# رجړومه

غوږ زما په نعرو چیغو خلکه مه ږدئ
لیونی یمه له ځان سره لګیا یم







ګوهر رحمن ګوهر

# د کتاب پیژندنه




د کتاب نوم : رجـړومه

شاعر : گوهر رحمن گوهر

خپرندوی : د ناهید کتاب خپرولو مؤسسه

د خپرونو نومره : ۱۴

د خپریدو نیټه : چنگاښ ۱۳۷۷ - جولای ۱۹۹۸ ع

چاپ ځای : دانش کتابخانه پیښور

مهتمم : پیر محمد کاروان

د کمپوټر سمبالوونکي : ایمل سنگریار او محمد ابراهیم «امیری»

تیراژ : ۵۰۰




## اهداء :

دعنایت الله گل په نوم چې زما په اوښکو کښې شریک، زما د ویجاړ وشپو اسره او زما د خوږ ژوند ګي تکور پاتې شوی دی.



مړاوې دې په سترګو کښې دمينې داغ يوې مه شه

ستا خندنۍ سترګې په ژړا چړې لوندې مه شه

اوردبيلتانه ديرچنارونه لمبه کړي دي

پورې په اوربل دبيلتانه دې سرې لمبې مه شه

ته خوارږه خوبونه په پالنګ دبې غمۍ کوه

چرې په نصيب کې دې زړه چاودې شوګيرې مه شه

ښايي چې لاسونه په نکريزو دې لړلي وي

هيڅرې سرې دې دځوانۍ دتال جوتې مه شه

زه يوازې ديريم ستا غمونو ستا دړدونو ته

زه چې يم ژوندۍ غمونه تا ته درنژدې مه شه

داليونۍ مينه ده ځما چې راته وايي دا

خوږداښکلې تن دې دسپوږمۍ په پلوشې مه شه



بې ستا دیادونو مې سودا نه شته
بې داستا مې بله مدعا نه شته

سترګې مې داستا په لورنیولې دي
ما لره څه بله مشغولا نه شته

ما له که دنیا ده خو ستا مینه ده
تیره ستا د مینې نه دنیا نه شته

زه داستا دمخ په رڼا ګرځمه
ستا دمخ نه وړاندې څه رڼا نه شته

اوردې په هغو ګلونو پورې شي
چرته ستا نرۍ نرۍ خندا نه شته

زه به ستا په مینه ځان تالاکړمه
ما نه لیونی ګورې سیوا نه شته



زه به ستا له میني نه په شانه شم

ستا که نه شوم زه به د بل چا نه شم

ما د ښتنې که پې رودلې وي

واوره! زه به چرې بې وفانه شم

مینه چې څوک کړي سرپه تلي کې وړي

زه په سربازۍ به وارخطانه شم

بیا مې د خزو په سرتوکه لاړې

ټینګ که په وعدې خپلې ریښتیانه شم

ته به اشارت د ښولاندې کړې

دابه کله وشي زه به رانه شم

مینه که ګوهره قرباني غواړي

زه به په خپل سرومال *اړیانه شم



زه خــودې يووړم په کـــتـــو کـــتـــو کــښــې
داخــه قــيـــامت وســـتـــا پــه يو ليـــدو کـــښــې
مـــاله دې راکـــړې شـــوګـــيـــرې ته لاړې
سترګې مې ګرځي په کوځو کوځو کښې
دســــپــــوږمـــۍ مخ باندې راښکـــمـــه کـــرښــې
زړه غـــولـومـــه دې يـوازې شـــپـــوکـــښـــې
داســـې ګـــڼـم چې ســـتـــا ښکالو ده چرته
ځـــمـــادســـاه بې کـــوره تلو راتلو کـــښـــې
ډډې مـــې کټ کـــې داســـې څـــرېکې وهي
لکه بانده وي دښـــويـرچو کـــښـــې
دازړه مـــې مـــوړشـــو ددنيـــا پـه خـــوږو
څـــه خـــوبه وي داســـتـــا دمخ خـــوږو کـــښـــې



څانګې دا ستا تاغلي غلي کاته
خوږل کوي دا شرميدلي کاته

دغه خوليت د مينې زړه کښې لګي
خواږه خواږه حيالړلي کاته

لکه رګ رګ چې مې نشه نشه وي
أف! په شرابو اغږلي کاته

لکه دنيا واړه سپړلي شوخاندي
ګورم چې ستا دا موسيدلي کاته

لکه چې لاس مې په زړګي لګوي
هی! دا په سترګو راتومبلي کاته

لکه بخري چې داور رانښلي
ځما په مخ راغوړيدلي کاته



فرښتې خاندي ستا دمخ ډيووکښې
سپوږمۍ دې رپي دحيا خولوکښې
وايم چې ښکل مې دقدرت گوتې کړای
رنگ يې تمام کړ ستا دمخ خوږوکښې
دادښو انجام غړی کتوري
ارمان چې ډوب وي پدې سترگو سروکښې
ستا دڅوانۍ *هوا ږڅه داسې خوږدی
خواږه به څه وي دجنت پيالوکښې
چې دقيامت شپيلۍ مې پانه څوي
داسې اوده شوی ستا دزلفو شپوکښې
ژوندته لمسيږمه چې تا ته گورم
دژوندبلنه ده داستا کتوکښې



پښې مې شوې تناکې دخيالونو په ليلا پسې
هيڅ نه يم خبر چې چانو مه خاورې چاپسې ؟
کلي، په کوڅو کښې ،په ميرو کښې ،په ښارونو کښې
ورک يمه سرگومه دزړگي بې نوم سودا پسې
هره يوه ځانگه چې ښکاره شي وايم داده جوړ
هرې يوې نه تيرشم وړاندې نورلاړشم رابيا پسې
نخښې راته نه ښکارې په هيچا کښې دزړه دسود
گرځم په لټون کښې دارمان ورکې دنيا پسې
داسې پښتنه به چيرته وي چې پلو لرې کړي ؟!
زه ناڅاپه چيغه کړم «زه گرځمه هم تاپسې »



زه لتهومه ننګيالی پښتنه

دخپلې مينې دنياګی پښتنه

په تصورکښې مې تصوير جوړوي

لا به راځي دادرخانی پښتنه

دهغې مخ پسې هرمخ ته ګورم

نه شته لا نه شته ليونی پښتنه

هغه به چيرته وي داويلی نه شم

وي به ضرور داملالی پښتنه

چيرته ګوټ پېر کښې به دلارتاوېږم

چې لاس به راکړي ګلونی پښتنه



زړه مې په دنیا کښې ځانګې نه دی پر هیڅا پیرزو

پیغلې پښتنې که مې پیرزو دی نو پر تا پیرزو

دا سوی ژوندون زما او دا خاورې ځوانې زما

تا ته چې یې سپارمه راځې زما په دا پیرزو

هغه ورځ دې رانه شي چې ستا سترګې نمجنې شي

ځانګې ده پر تا مې دسپرلو واړه خندا پیرزو

ته مې په دې ټوله دنیاګۍ کښې غوره کړې یې

ځکه چې پر ځان باندې مې ده پښتو حیا پیرزو

زړه چې مې دډېرې خوشحالۍ نه چیر ته ونه چوي

تاچې دنکریزو سره لاسونه کړل پر ما پیرزو



بې نومه شریکې چې سودا نه شي

اورپه زړګي کښې مې* دُکیا نه شي

سترګې چاپیره زما سترګې لټئ

چیرته دمه په سترګوستا نه شي

بانه ځنبل تیتول بیا نیغول

پیغلې !ادمینې ابتدانه شي!

ماچې دزړه دسودرابیا لټوله

چیرته زړګی مې سودپه تا نه شي

ستادې لندشان ملاقات یادونه

زما دعمر مشغولانه شي!

*لوګیدل



ته دې بانه پورته که دستورو پلوشې څه دي!

ته سترګې راوړو د شرابو پیمانې څه دي!

اوردې دی رانښتی راپورې اوستي کیږمه

داخماري سترګې اوپکښې بلې لمبې څه دي؟

نورې خلقې په څه پوهیږي چې تا څه وويې

زه په بس رسیږم ستا دسترګو اشارې څه دي

ستا دادواړه سترګې چې راتینې مې پرسترګو شي

زه يې نه منم چې دنصیب بلې ډیوې څه دي

لږې خودې خپلې سترګې وګوره خوړل کوي

ماته دې نیولې دې ګولۍ ستاارادې څه دي؟



مخ دچالیدلی مې په سترګو کښې غړیږي
نه یې پېژنمه خو پر زړه مې راوریږي
د رنګ ساعت لیده لکه د تندر پریوته چې و
زړه لکه د پاڼې لا تراوسه مې رپیږي
نه یې نوم راځي نه مې تپوس ترینه څه کړی دی
نه یمه خبر چیرته په کوم چم کښې اوسیږي
نه یې راته ووې چې به راشم یا به رانه شم
دامې دی باور چې خامخا به راستنیږي
لږه شوه موسکی تیتهو بڼو کښې یې سلام وکړ
دغه اخري کاته یې اوس هم رایادیږي



ستـــــرگـــــې راوړو چې ډیوې بلې شي

زمـــا دزړه دســـرتیـــاري غـــوڅـــې شي

لږه مـــوسکی شــــه چې خـپــــه نه یې ته

چې له خـــاطرمـــې وســـوســـې لرې شي

زمـــا په ستـــرگـــو کـــښې ژور وگـــوره

زمـــا دلورچې دې گـــیلې ورکـــې شني

لاس کـــړه راوړاندې اوراځـــه په مـــخکښې

چې دادمـــینې فـــاصلې کـــمـــې شي

تامـــاســـره لاوخت تیـــرکـــړی څـــه دی

ستـــابه زمـــا خـــبرې ښــې خـوښـې شي



کـــــه دمطلب تـه کی پـه خـــــوله نـه وایـي
زه دزړګـي دي پـتـــــه غـــــلا پيــــــژنم

د درنګ شـيـــبـــې داناڅـــاپي مـــلاقـــات
لکـه مـــــودوراســــې چې تـا پيـــــــژنم

داښکلې ســتــرګـــې دوکـــه نه شي ګـــوی
تازه داتـانـه نـن ســــيـــــــــوا پـيـــــژنم

تـــه ددنـيــــــــانـه يې بـدلـه ډيــره
ځـــانګې زه داتـه وله دنـيـــــا پيـــــژنم

دابـه ډيـوه زمـــــــــا دبـخـت بـلـوي
ســــتـــا پـه تـنـدي خـــوره رڼا پيـــــژنم



سترګي دې يرو به رابيا ته ګوري
خوځغه ګوري خپل آشنا ته ګوري
هسې تول خلک د نظروباسي
چې سمې سم شي نو يوخوا ته ګوري
د مينځ له حاله ساده ګان څه خبر
په زړه کښې خاندي دې دنيا ته ګوري
چې د کتو په فرق نه پوهيږي
هر سړی وايي جوړې ما ته ګوري
د چاکتل يا ناکتل څه کوي
پښتنه تل خپلې حيا ته ګوري



ته چې د بنولاندې په غلا گورې
دا په ناشنايۍ کې څه آشنا گورې

زه چې درته نه گورمه گورې ته
زه چې درته مخ کړمه بل خوا گورې

گرځي دې سرخې په مخ نرۍ نرۍ
زه دې لگم څه چې په حيا گورې ؟

مينه که دانه ده نو نور څه دي دا !
چارچاپيره گورې وارخطا گورې

ستا دانا غرضه ناغرض کتل
خدايیگو د کتو نه هم سيوا گورې

ستا سترگو کښې نخښې څه داشانې دي
خلق په رسيږي چې ته ما گورې

دغه ليونتوب خو خبروي عالم
کور پله روانه يې په شا گورې



ستا مړاوي مړاوې داډېوې سترګې
لکه چې پرانزي فتنې سترګې
لکه دنرې پښتنې کتودې
څانګې زما کړلې مړې سترګې
سترګې مې پټې دجهانه کړلې
چې مې په تاشولې خوږې سترګې
ماپکښې خپلې سترګې ولیدلې
دومره شوې ماته رانژدې سترګې
خلک په سروسترګو ګومان کوي ستا
سترګې دي دادشوګیرې سترګې
سرپېر اوږه زما قلاره کیږده
مه غروه اودې اودې سترګې
جامونه تول مې کړل دپښو دلاندې
ښکل مې کړې څه نشې نشې سترګې



ستر گې دې وايي راته داسې چې آشنا يې جوړې
زما د مينې د زړونخښود نيا يې جوړې
ما ته را ياد دې شوې قيصې چې ته مې وليدلې
هاغه خندا هاغه حيا زما ليلا يې جوړې
زما د زړه په پرهر و نو کښې لمبې پورته شوې
ذره ذره مې د وجود وايي زما يې جوړې
لړمې نژدې پريږده په ځير چې درته وګورمه
زما د مينې د روژويو روڼ سبا يې جوړې
ما التهولې لتهولې چې خداى راوستلې
زما د ګلو دسپرلو وركه خندا يې جوړې
پښو مې قسم وخوړچې مخكښې به قدم لاړنه شم
زما د مينې سر منزل او مدعا يې جوړې



زه پرکـــــاله پروت وم خلق وايي تـه راغـلې وې
خـــواتـه زمـــا ناســـتـــه وې په پتـه ژړيدلې وې
ستـا په زړه کښې څه عجب خيالونه گرځيـدلي وو
خـوله کـښـې د پلو و بې اخـتـيـاره بـوړنيـدلې وې
مـا په بې سُری کـښـې چې له تاسره خـبـرې کـړې
ته به د خـپـل نوم په اوريدو خـوشـرمـيــدلې وې
تـه جـــوړې د مـــينـې په يادونو ډوبه شـــوې وې
ستـــرگـې دې زمـــا په لورنيــولې خـوبولې وې
لاس دې پرتندي زماکـيـښـودی وچې نه ووځـوک
خلـک چې بيـاراغـی په زړه مـاتې پاڅـيـدلې وې



تاچې موسکۍ سترګې په خندارا اړولې دي
زړه کښې دې زما ناستې لمبې بیا تخنولې دي
* ک دکوځې لرې کړه یوځوقدمه پورته کړه
مه وار خطا کیږه کوځې واړه غلې غلې دي
دې سپینې سپوږمۍ کښې راته وایه چې داخوب وینم
یاماسره خوا کښې رښتیا سترګې خوږولې دي
ستاخیالونه شونډوله چې راشي په رپاشي تول
دغه رپ رپي کښې ماخبرې ستالوستلې دي
زړه کښې مې راپورته شه احساس چې ته مې خپله کړې
اوښکې مې دسترګو غتې غتې بهیدلې دي
* د پلوسې ځانګه چې کوځه کښې دسپوږمۍ نیوي له
پاره کیښودي شي.



چېرته بهرمې له اختیاره دزړه څریکې نه شي
په چم ګاونډ کښې مې خورې لیونۍ کریکې نه شي
ماله دمینې په دعووباندې یقین نه راځي
څوچې سرې اوښکې مې په اوښکو کښې شریکې نه شي
ستادې دوه سترګو دیوې چې کوي داسې شغلې
زمادمینې رنګینه شپې به تاریکې نه شي
ستادسروشونډوسره ګلونه چې *انولي مې دي
دزړګي سود مې په ګلونودسپرلي کې نه شي

*تولول



پټ مې په اوربل کښې دژوندون واړه غمونه کړه
يو يه سي سيلۍ مې درنه تاورانه لاسونه کړه
مابې دسروټيکو دداغونوڅه ونه ليدل
راشه لږ ټيکورمې دژوندسوي ارمانونه کړه
توره نيمه شپه ده اوپړونۍ پرمخ راکاږه
راشه رابياګۍ شريک له مادې تهمتونه کړه
زه اوته تړلي يوعالمو ديوبل سره
راشه نن توکل وکړه رښتيادا پيغورونه کړه
سرمې په پولۍ پولۍ سينه باندې لږ ولګو
نن دهميشه لپاره غلي دادړدونه کړه

ستـرگې مې دسـترگو سـره پرېږده چې خبرې کړي
شــونډې رانژدې کــړه اويو ځــای داپرهرونه کــړه
راشـــه پرننگونو *ادام شـــوې ننگيـــالی زمـــا!
گډمې په نصيب کښې دنکريزو سره رنگونه کړه
*جوړه شوې





ستـــادبنــو څــوکــې مــې په مخ کــې غــړيدلې دي

سترګې مې داخپلې ستا په سترګو کښې ليدلې دي

تاچې دبيلتـون په شـپــه خبـرې کـړې دځــان سـره

مــــــاتــه پـه رنځــــــولړلي مخ واړه ويلـې دي

ته چې دهمځولو په تولي کښې *سـاوې ساوې شوې

ستـادمخ سوروالي کـښې قـيـصې تولو لوستلې دي

ستـــا په چپـو شــونډو پوهيــدمــه چې داڅــه وايي

مـــاته دې دســــترګــو اشــارې رارسـيــدلې دي

مــا اوتا شــوګـيــرچې داخــتـرپه لويه شپــه کـاوه

ستـــادلاس نکريزې په پالنګ مـــې ريژيدلې دي

*غلې غلې



تا ته مې کتلو د درشل تراخري قدم
ته په ترور مې کښې د ماښام رانه جدا شولې
فکر و مې وړی چې زه وینم یم که اوده یمه
خلک تول ګوریږي داسې اورم چې زما شولې
یادبه دې وي مادرته په غور کښې څه ویلي و
ستا پر مخ زرغونې چې بیا پانې دلالا شولې
ستا د حیاء کو ستر ګو روح مې جړ قولی و
غاښو کښې پیڅکې له بُتکې نیمه په شا شولې
ما خو په دروغه درته ویلي وچې ورانه ده
ته څو مره ساده وې، وته ګوره په رښتیا شولې
نره پښتنه وې سترګه چانه سوځیده دې نه
پت دو پاللو عقوبت د خپل آشنا شولې



ستا په کږو کتو پایېږمه زه
څه په ازغو لشو پایېږمه زه
بانه دې نیغ زما د زړه نه وځي
په دې ګُنډوغشو پایېږمه زه
ستا په بنګړو کښې دې ژوندی سندرې
پدې نغمو نغمو پایېږمه زه
ستا دځوانی په مست هوا راخښلی
پدې خوږو نشو پایېږمه زه
په توره شپه په ګوروزلفو کښې ورک
په دې تیاروتیارو پایېږمه زه



ستاله سروسترګو* بردمې دشرابو پيمانې دي
په تيندکو ،تېکونولګيدلې زمانې دي
داچې زه دې ښکلې مخ ته ليوني ليوني ګورم
ستادمخ په سروکښې مونتې مې زړه پورې نښانې دي
کله ګورم ناغرضه ،کله ګورم په بل لورې
دامې واړ ستاديدن ته جوړې کړې بهانې دي
په کتو کتو مې اوښکې د پيرزونې پرمخ راغلې
دامې ستادمخ زيارت لره ساتلې شکرانې دي
ستادسرونکريزو لاس مې هم په لاس کښې دی نيولې
خوباورمې نه راځي لا ،وايم خوب دې افسانې دي



ځانته چارا ښکلی په رنگینه لوپټه یمه

یم بلې دنیا کښې نه په ورځې نه په شپه یمه

سترگې دخارومې په عمرونو کښې ښکل کړې دي

نه یمه په واک کښې څه افت نشه نشه یمه

داسې هواگیریم چې مې پښه په ځمکه نه لگي

زه دچا په سترگو کښې روان یمه غوپه یمه

سرچې مې یوځلې پرځنگله دچا ایښی دی

زړه مې په قلاردی له غمونو په دمه یمه

زه دمرگ په سترگو کښې اوس ښه په برق خندلی شم

زه پرخپلې مینې پښتنې دومره ډاډه یمه



پریبږده چې د سرو سترګو شراب دې راڅښېږي
سوی کنډولی چې مې د سترګو خړوبېږي

زه داستا په سترګو کښې نن وایم چې لاهو شولی
پریږده چې بانه مې له بڼو سره جنګېږي

مه ځنبوه سترګې چې خواږه د دیدن کم نه شي
ما باندې یوه ځمبا درنه ډیره تېرېږي

سترګو کښې دې وایه چې په زړه باندې دې هرڅه وي
داسې شپه چې راشي ژبه ګونګه پاتې کېږي

نن هر لحظه وایم چې نقش مې په ذهن کړای
داد پیغلتوب لحظې بیا کله راستنیږي



بانه دې تېښ شو سلامونه کوي
خوږه خوږه کښې گوزارونه کوي
په تصور کښې دې داڅوک گرځي
سرخي په مخ دې حجابونه کوي
زما په سترگو کښې څواب ولتهو
شوندې دې رپي تپوسونه کوي
ستا د موسکا بڅري شورا پوري
دزړگي ځريکې مې اورونه کوي
دخولې قسم ته څه حاجت پاتې دی
سترگې په سترگو قسمونه کوي
ته په نکريزو سرې منگولې راکړه
پښتنې دغسې لوظونه کوي
شراب دمينې دې نشه کړ گوهر
په وينه وينه اوس خوبونه کوي



ستا له تصوره شوگيرې زما خورې شي

توره تياره لاړه شي يادونه دې ډيوې شي

زه چې په خيالونو کښې دې سربېر را ياد کړمه

تاورانه چاپيره د سپرلو يخې ورمې شي

چيرته په کوخه کښې چې پړونې وځليږي ستا

ډکې د سپورمۍ د پلوشو واړه کوڅې شي

زه چې د سپرلو د زيړو ګلو ننداره کړمه

ذهن کښې خورې مې ستا رنګينې لوپټې شي

غوړوله نارې د تورانکې چې را ورسي

ډوب په تصورشم سترګې ځانله مې لوندې شي

ته چې ځوراغلې نه يې خومره ګيله من يمه

ته چې مخامخ شې هيرې واړه مې ګيلې شي

ستا په يوليدو کښې د دنيا واړه خواره دي

سترګې د ګوهر له اماني د نيا مړې شي



ستا لو پتيه نن د بلې نه آوازونه کوي

بنګړي دې شرنګ کښې څه د مينې سلامونه کوي

داسې ښکاريږي لکه مينه چې زما زنګوي

غبرګې کوڅې دې په ديوال داسې تالونه کوي

ما ته هم ګورې خوځه داسې خوبولې غوندې

لکه چې سترګې د سباورځې خوبونه کوي

په رپندې داحساسا تودې زه ورسيدم

ستا چوپې شونډې دوباره زاړه لوظونه کوي

بانه دې ټيټ شي په حيا کښې کله بيا نيغ شي

حيا دې غشي تيروي او ګوزارونه کوي

ټول قضا شوي ديدنونه مې راوګرځول

سترګې مې ستا پر مخ ولاړې دې لمونځونه



غورو کښې مې بیا نرۍ شنیا لګي
سترګې چې په سترګو مې نن ستا لګي
وایم چې مودو نه مې لیدلې یې
مخ دې پرمخیا داسې نن آشنا لګي
ستا مخ وسکا دوخت رنګونه نور کړلو
ما ته دا دنیا بله دنیا لګي
ته چې مې دکله نه لیدلې یې
زړه باندې زمانا رنیا رنیا لګي
ته چې داسې ګوهړې په خورو ،خورو
خدایګو چې ګوهر دې څه رښتیا لګي



وام چې ستا د ستر گو په بردم کاسو کښېږ ورک شوی
بیا په خود کښې رانه شم یوځل نشو کښې ورک شوی
واړه گرد شونه د دوران په تپه ودریږي
ستا د خیالولې په خوږو کتو کښې ورک شوی
ژوند کښې مې یوځلې انتها د مینې ولیدای
څاڅکي مې داوښکو ستا کږو بڼو کښې ورک شوی
واړه ستومانی به د ژوندوني زما وریژي
سرمې ستا پرلیچه داوربل تیارو کښې ورک شوی
داځه لیونتوب دی چې په زړه کښې زما لیت لگی
وام لکه موسکا چې ستا پر شونډو سرو کښې ورک شوی



ستـــرگـــې مـــې له مـــخـــه ستـــا شـــوکـيـــږي نه

څـــه چې کـــيـــدل وشـــو نـورڅـــه،کـــيـــږي نـه

داشـــراب دســـروســـترگـــو مـــيـــرمنې دي

زړه تـــه ورپـــريـــوتـــي دي کـــــــــــوزيـــږي نـــه

داکـــــوڅـــــه منزل زمـــــا دمـــــيـنـي شـــــو

داقـــدم راغـلـى وروســـتـــو کـــيـــږي نه

ستـــا پـه اوره ستـــرگـــې مـــې چې پټـــې شـوې

اوس دچـا پـــرمـــخ بـانـدې غــــــــريـــږي نـــه

بد مـــې په گـــســتـــاخـو ســترگـــو مـــه گـنــه

دا د ديـــدن وږي دی مـــــــــــريـــږي نـــه



ستا ملاقاتونه پساتونه شو
غلي غلي خبريکې نن اورونه شو
هاغه دحيا اوتر اوتر کاته
نن دپښتنې مينې لوظونه شو
ته چرته روانه وې اوزه چرته
نن په يوه لاره مزلونه شو
اوښکې شوې شريکې درد شريک شولو
دوب په يو تر قاري کښې دوه زړونه شو
تاچې منې له ختـه ليچې تاوکړلې
ماته دژوندون اسان غمونه شو



په وت کښې د پېروني يې چشمان راواړول
شراب يې هم نوستل او هم يې غشي ورول
خواره کاته يې څه ووچې لمبو ژبه کوله
زما په قلار زړه کښې يې اورونه تخنول
د سروشونډو موسکا زما د مينې سرنامه شوه
سور گلي مې په لاروکښې له ښونه تاويدل
حيا يې گونگه ژبه کښې پرمخ وينا کوله
زړگي مې ارمانونه پردې مخ ديره کول
زما د مخ تود و خولو کولو تپوسونه
هغې په تيتو سترگو ځوابونه راکول



ښه پوهېږمه چې مینه تاواني ده
خوبې مینې چې شي څه خوشي ځواني ده

زما تنده ستا دسروښونډو لېواله
دنیا ټوله دشرابو ارماني ده

تاچې زلفې مې ببرې په اوږوکړې
زما وتې دژوندټوله ستوماني ده

ستا په سترګو کښې به نخښې څه ضرور وي
دنیاګورې پرما ټوله ګوماني ده

چې دې سترګې کړې ستونه دشرابو
په وکښلې توبه بیا مې پښیماني ده



داخو دې منم چې چا ته نه ګورې
چل څه دی چې خپل آشنا ته نه ګورې

ښه په دې خبرېږې چې دلې یمه
بیا هم ناغرضه ما ته نه ګورې

پریده چې زما دزړه رضا څه ده
نن خو دخپل زړه رضا ته نه ګورې

خلک زما سترګو کې هم تالټې
ته یې ورکه شا ته نه ګورې

سترګې دې په یو ټکي ولاړې دي
بُت خو نه یې ؟ ابلې خوا ته نه ګورې

یوځل په دې ډک محفل کښې وګوره
خیر دی که بیا چرې را ته نه ګورې



زړه په ټولی محفل کښې بس یو تا وینم
نه یې وینمه داسې دا دنیا وینم
زړه او ته چې ناست لکه یو ځای یو
ستا نه سیوا سیوری خواوشا وینم
مخ که اړومه تیاره کیږي بیا
ستا ستر ګو ته ګورم نور نړا وینم
واړه خلقې لکه پردي چې وي
پېښېږي کښې یوتا آشنا وینم
څه شو که په دې محفل کښې ناسته یې
تازه له دې ټولو نه جدا وینم
ستا زما اروا لکه خبرې کړي
ستا په مخ د خپل زړګي ترقا وینم



په تيوکو تيوکو شوه ربنتيا خبره
گرځي چاپيره زما ستا خبره
زما نامه او ستا نامه يوځای شوه
چابه گنيله داسې دا خبره
نن لکه لمر هسې ډاگې خبره
او پرون څومره وه دغلا خبره
چې نه زما او نه ستا خولې له راتله
نن لکه وي چې دهر چا خبره
ما درته ويلي به ووچې څه مې لگې
دخولې مې اخلې ستا حيا خبره



ستا کاته غزل د مینې جوړوي

د حیا خولې یې ماته اوروي

یو نظر دې کې پیالې د شراب راکړي

بل نظر مې لکه پښبې راټینګوي

یو نظر لکه سُنبُو باندې پیل کړي

بل نظر مې پرزړه پهې لګوي

یو نظر مې له خپل ژوندځینې وباسي

بل نظر مې په خپل ژوند شریکوي

یو نظر لکه چې پاڼې پاڼې توی کړم

بل نظر مې په بڼو راټولوي



غلې غلې راته ګوري دچا سترګې

په حملو حملو راکاږي زما سترګې

جوړوونکي دنيا تولـه غونډه کړي

جوړې کړې لـه هغې يې دي ستا سترګې

خلقې بـه راتـه ګوري ښه پوهيږم

خوزه نه وينمـه نورې سيوا سترګې

زما سترګې ستا پـه سترګوکې شوې ورکې

ستا دا سترګې دي زما اوکـه ستا سترګې

خپلې سترګې مې دي هيرې ستا مې يادې

زما سترګو ګښې کرلې دي تا سترګې



دا ستـرگـې زمـا دارمـانونو غـزلونه دي

دا خـواږه دمخ زمـا پيـرزو زمـا سـودونه دي

دغه سوركى شونډې لكه رنګ مې دجذباتو وي

دا خـواږه كـاته بس دلاسـه اوتـكورونه دي

دانرى تكور چې دبنګړو مې ډوب په غيږ كښې دى

دازمـا ګـډا زمـا مـسـتي اوسـرودونه دي

داربندى شـونډې چې نه ويلو كـښې هرڅـه وايي

دادمـينې واړه تپـوسـونه ځـوابونه دي

داپښتني سترګې په حيا حيا چې ټيټې شوې

داپورته كيـدل دپښـتنې مـينې لوظونه دي



سپوږمۍ ده شومه دم دی اولیلا په خوب اوده ده
حیا یې په رخسارو د یوې بله لمبه ده
د یو پلوشې بله مخکې کیږي چې یې ښکل کړي
دا ښکلې خوبولې بشره څه افت خوړه ده
بې کوره یې شي ساه کله بو گنیږي کله توپ کړي
چې چیرته دخیالونو په تال تلې په جوته ده ؟
شغلې یې له تندي ځي دخوایخې مړې مینې
ته وایې به چې ختلې دجنت په مناره ده
قدرت پکښې لیدلی شي خپل مخ اوو یا ړیدی شي
دا مخ د پښتنې !دفرښتو دمخ آینه ده
ژوندي دي اخترونه او تالونه لا تاوده دي
دا سره منگوله هغسې نکریزو کښې خوشته ده



ښکاري چې په ګــــوتوی جــــوړه کـــړې يې

بيـــا يې له آســـمـــــان راکــــوزه کـــړې يې

داد مخ کـــــاســــــــه او انـدامــــــونـه دا

داد کـــومـــــې خـــاورې يې روغـــه کـــړې يې

ايـښـې يـې قـلـم دی تـانـه پـس جــــــوړې

ته يې اخـــــري ځل جـــوړه کـــړې يې

تـابـانـدې خــــــوارږه دي د قـــــــدرت تمام

وی! چې تـه يې شـــــومـــــره خـــوږه کـــړې يې

زارشـــمـــه د خـــپلو ســـتـــرګـــو زارشـــمـــه

ته يې چې عـــالم کـــښـــې خـوښـــه کـــړې يې



ته راغلې محفل ته څه چې ګل واړه ډیوې شولې
غلې شوې خبرې سترګې ټولې تاپسې شولې
ستارا تلو سره واړه محفل پربله واوښته
خلک داسې وړ قیدته وایې زلزلې شولې
هغه چې یې ځان ته څه ویل نو رنګ یې والوته
ځان ته چې غاوره وي اوس ستا په تماشې شولې
هسې *خوباسې وي ،ستومانې وي اوجوتې شولې
ستانامه خوره شوه اوخبرې بیا خورې شولې
ځنګه یې اریان اریان کتلو مونږه دواړو ته
ته لکه دنرې ښېښتنې چې رانژدې شولې

*غځونې



هغه سې نيمګړي لاجامونه دي
تاو کښې لا د ټول عمر تاوونه دي
مه ځه له محفله تلوار مه کوه
ستا راتلو سره واړه خوندونه دي
سرې شرابي سترګې بيا راواړوه
ما خوځانګې ښلي څو ګوټونه دي
لاس مې په اوږه پريده چې پرې نه وځم
سُر کښې نه يم لرې ديوالونه دي
ستا دسُر کو شونډو اورمې اوپکه
نن مې تيند کونه ثوابونه دي



ژوند مې په مينه کښې لوټلی واخله
سوی نصيب مې سوځيدلی واخله
ستا د بيلتون شپې که داسې راځي
نو ما د خاورو ايرو څلی واخله
نشته قسمت مې د خندا نشته دی
ما په سپرلي کښې دوړيدلی واخله
ستا په بڼو قطرې داوښکو ګرځي
ګريوان زما راشه شليدلی واخله
ګوهر دې داسې ليونی دی ځانګې
په خپل اوربل يې خنديدلی واخله



ستا دیاد لمبې دي اوزه سوځمه
تورې تورې شپې دي اوزه سوځمه
ستا تصویرمې زړه پورې نیولی دی
سترې شوګیرې دي اوزه سوځمه
ماتې مې تنهاکې دزړګي شولې
اوښکې مې بس ملې دي اوزه سوځمه
ستوروا وسپوږمۍ رڼا نوستلې ده
یخې پلوشې دي اوزه سوځمه
داګیلې جوړ نه رسي آشنا ته نن
پند په زړه ګیلې دي اوزه سوځمه
ته به څنګ رارسې زما عذرله
دومره فاصلې دي اوزه سوځمه



ماته دمینې قیصې مه یادوه

هغه گُل شوې ډیوې مه یادوه

پریده چې زړه مې لږ کرار ومومي

تیرې ساه ډوبې څپې مه یادوه

د نیمه خوا مینې پرهرې چیړي

زړگیه! هاغه کوڅې مه یادوه

څریکې مې خیژي دوجود ه نه لا

دفکر تاله جوتې مه یادوه

چیرته په اوربه مې سپوږمۍ لمبه کړي

ماته هغه شوگیرې مه یادوه

گریوان مې لوند دی لا وچ شوی نه دی

دچا داوښکو شپې مه یادوه



ستاچې په رخسارو څانګې اوښکې رڼې توی شولې
داسې معلومیږي چې دصبر کاسې توی شولې

مات بنګړي په کټ کښې دې پراته دي لیچې تشې دي
اُف !دځوانۍ سازه څه خوږې نغمې دې توی شولې

مخ دې زیړه پاڼه شواووینه بیلتون وخښله
ته به وایې له مخه د سپوږمۍ پلوشې توی شولې

سترګو کښې رڼا دې څه سره سره او مړه لګي
ته به وایې په قبر دشهید و ډیوې توی شولې

ستا دښکلو شونډو نه غمونو خندا یووړله
اُف !لکه چې پاڼې دلاله په مېرې توی شولې



په زړه بې وسه يمه تا ته ګورم
نظر چا ودلې مې دې چا ته ګورم
پاتې زما اوستا ترمنځه شه دي
بيا قدم نيسمه اوشا ته ګورم
ستا د تندي خالونه مړه غونډې دي
لکه چې زه چا نا آشنا ته ګورم
مينې دا کومه مرحله راغلله
چې هغه ګوري زه بل خوا ته ګورم
زما د لاس غوټۍ پکښې شته دې لا
ستا د کاږه اوربل وفا ته ګورم



رانغله واپس هغه تیاره شوله
لړه تیاره نن ځومره تیاره شوله
دابدرۍ تکرې راپه غاړه دي
لاړله دبخت ډیوه تیاره شوله
ښه شه چې پراوښکو وي پرده پرته
غم چې شولو دروند نو شپه تیاره شوله
ژوند لکه چې مرگ سره بدل کړمه
اُف! دبیلتانه بده تیاره شوله
زه دگتې بُت یم که بنده یمه
مړیږی مې احساس ډیره تیاره شوله



ښنګه وخت تیریږي دا تپوس مه کوه
وبه ژاړې ښاغلې دا تپوس مه کوه
ښکلي حالونه وایه چې ته ښنګه یې
ما پریده په ځای زما تپوس مه کوه
تاچې پېژندلو تېر وختونو کښې
مانه نن دهاغه چا تپوس مه کوه
داسې تپوس کړه لکه پردی چې کې
مانه لکه ښکلي آشنا تپوس مه کوه
ستا د تپوسونو وخت اوس تلی دی
ښه به وي اوس داچې بیا تپوس مه کوه
ستا په لاسو سرې وینې مې پورې دي
دغه ګوره نورسیوا تپوس مه کوه



ماچې دې داسترګې ښکلې ښکلې ښکلولی به

تا تیرې قیصې را ته د مینې تیرولی به

تا به د خوب ډکې سترګې ورو ،ورو ځنبولی

ماچې دې ببرو ېښته ورو ،وروهوارولی به

داسې لیونی په برق خنداد واړو کولو به

مرګ ،خپله ژوندون ته زیرولی پسخولی به

ژوند ته موچل ښودی وای چې ژوند تیرول څه ته وایي؟

شپې دلوی اختر په سرونکریزو رنګولی به

زه چې شوی خفه نو په زارو به رضاکولی تا

ته چې شوې مروره مروره نو بیا ماپخلاکولی به

تول تراخه دژوند به په خوږو کښې بدل شوی و

ماداسوې شوندې ستا پرشونډو یخولی به



ورځې د دیدن وې او ښې ورځې تیریدلې
شپې مې ستا له خیاله رنګیدلې خوږیدلې
ستا مینه اخلاص ؤ او پر ما باندې باران یې ؤ
ما ته په قدم قدم ډیوې وې بلیدلې
ستا او زما ذکر هره پینډه هر محفل کښې وو
څومره خلقې وې ما او تا ته پسخیدلې
دومره رانژدې شوې چې رانوتې وینه کښې
ما سره هر ساه کښې اوسیدلې ګرځیدلې
چیرته چې کتل به مې نو ته به ښکاریدې راته
ما ته په ګلونو په سپوږمۍ کښې خندیدلې

زيرى داختـــــــــــراو دنكريزو دتيالونوؤ

ستـرگـې چې سحرمې ستا په ستـرگـو غړيدلې

نورڅه وو دخداى په خدايې كښې چې مې غوښتي وو

ستـاليـچـې چې مـاته اوږديدلې غـوړيدلې

خاورې پردې ستورو د آسمان به مې ورونوستي

ستا دموسكو ستـرگو پلوشې راڅـڅـيدلې

اوس وايم چې سترگې په نوكونو مې ړندې كړلې

ماڅله ليـدلې يا ته څـه ته لويـيـدلې



چا وې له لاسونو نه لمنې خلاصېدل به وي

دې ډکه دنیا کښې یوله بله ورکېدل به وي

ماوې هن مرګی به زما ستا لاره جدانه کړي

چا ته وه معلومه منځ په لار کښې بېلېدل به وي

داسې مو خندل لکه ژوندون تېوله خندا چې وي

چا داسې ګڼله نولېدل او ژړېدل به وي

یا خو بې دیدنه یوه ګړې به تېرېدله نه

یا اوس بې دیدنه د ټول عمر تېرول به وي

ستا کوخه او چم زما د مینې زیارتونه وو

بې زیارته اوس له زیارتونو تېرېدل به وي

ماخو وې چې ژوند به په څنګلو د یو بل وځي

غیره د یو بل کښې په آرام سره مړېدل به وي



بیا به مې سرې سترګې آشنا ستا په لور کږې نه شي
اوښکې به ترې څاڅي ستا له غمه به لمدې نه شي

بیا به مې سپوږمۍ ستورې واونه ورې په خبر وستا
څوړند سر په بالښت به مې ستا نورې شوګیرې نه شي

ژوند لکه دانه به په سوربڅ کښې خپل لوخړه کړم
واوره! ستا لمن ته به مې هیڅ‌څیرې اسرې نه شي

زه د خپل خیالونو په جهان ځان له سودا کوم
ستا زلفې عبث زما په لور چې راخورې نه شي

زه ستا د دنیا نه لرې لرې ګوښه ناست یمه
ګورې ستا تندۍ چې په نمر بیا ماته خولې نه شي

ما دیوه پوکلې ده لیده مې سترګې نه کوي
هیڅوک دې تیارې کښې دې زما د تسلې نه شي



وړی یمه یاد د پرونو سترګو

نه لرم نصیب د ننو سترګو

تا ته مې کاته د زړه د سولو دي

ګورم لکه تا ته په ړندو سترګو

یادې مې دي څانګې خوبه هیرې کړم

هغه اشارې د نیم کښو سترګو

ته د زوړه وخته تیرو تلی یې

خاورې د ندلی شوې په زړو سترګو

نن مې رنې اوښکې په ګریوان څاڅي

دابه هم کولو خندنو سترګو

زړه به دې کرار نه کوي پوه یمه

ته چې ګورې بیا په سوو سرو سترګو



مخې مخې ته مې کيبږي ستا يادونه
په ترتکو مې ژړئ د زړه داغونه
ما په سرو چاپو کښې وسوځئ چې خلاص شم
وريتوي مې خپل نيمګړي ارمانونه
نه مې ژوند ،نه مې ځواني دواړه په کاردي
دواړه يوسه ، صدقه د تابيلتونه
ما په مينه ځان تالا کړ سود مې دادی
په ځولۍ کښې ګرځوم اوښکې ډنډونه
زه دې ډيرپه زړه ښاد من کړمه ښاد ګرځم
بس دی لاس زمانه واخله اې ژوندونه
لوغړنې تورانکې رانژدې شه
چې دسوي ژوندانه وکړو ويرونه



مینه زما داسویلو ډکه ده

لاره مې واړه دازغو ډکه ده

خدایه! سره ساه مې وانخیستله

سینه مې تانه دګیلو ډکه ده

سروټکې نیسي زمانه راپورې

سینه مې ټوله دپُوکو ډکه ده

زه ناآشنا دخوشحالۍ نه یمه

زما ځواني بس دسلګو ډکه ده

په زیړوګلو دسپرلي کښې ولاړ

درسته لمن مې دایرو ډکه ده



مړاوي مړاوي سترګي دي غمونه پاروي
وچي وچي شونډي دي دردونه پاروي
ته چي په پرکالي پرکالي ګسبي مي نوم اخلي
ستا اخلاص او مينه سره اورونه پاروي
ستا په زيړي مخ اوښکو ته نه شم ټينګيدلی
يوزبيرګی دي ماته قيامتونه پاروي
ستا په لوغړنو سترګو بيا ماته کتل
هيرکړي له ناکام زاړه يادونه پاروي



ستا خوار یادونه به ورو هېر کړمه

ژوند په خپلو لاسو به ګنډ هېر کړمه

څوک وايي بې مینې ژوند تیرېږي نه؟

زه به ی په ژړا په خندا تېر کړمه

کله به داوایم چې ته خاورې شوې

کله به خپل ځان په مړو کښې شمېر کړمه

ته به ماونه پېژنې بیا چیرې

زه به ژوندانه په داسې څېر کړمه

ستا آواز به پاتې ستا پرشونډو شي

زه لکه پردی چې په تا پېر کړمه



چې دا زه د زړه د ځـــانګې نه جـــدا یم
مـــا به پوه کـــړې ژوندې ځله په دنیـــا یم

خـدایه! دا سـختـې به ستـا پر مـا پیـر زو ږي
ځکه زه د بیلتـــانه په ســختـــو پا یم

غـــو ږ زمـــا په نعـــرو چغـــو خلکه مــه ړدئ
لیـــونی یمــه د ځـــان سره لـګیـــا یم

ددې دومـــره بې ارزې د ژونـد ســـره هم
پښتنې پیـغلې زه ستـا یمـه، زه ستـا یم

دا ژوندون مې ستـا په مینه کښې شو خاورې
ښايي بیـا دې هم خیـال راشي بې وفـا یم

خلک جـوړ دې پیـغـــورونو له ګـــوهره
پرېـږده حـــال د زړګي ځلـه چاتـه وایـم



بیا مې په مخ ښخې دي آشنا سترګې
ولې دې پردې کړمه زه دا سترګې

څانګه ده ولاړه دبلې په سر
غوښې غوښې وینم دوفا سترګې

ما سترګې ګنډلې له جهانه وې
ما خوغړولې یو په تا سترګې

دا سترګې به څنګه زما هیرې شي
دا سترګې زما دي دحیا سترګې

وایه چې رښتینې مینه هلته ده
چیرته چې دوه سترګې کړي پخلا سترګې

ستا سترګو ته کله چې زه وګورم
ستوري ښکلوي په شپه زما سترګې

تیرو ختونه بیا دې راپه بیرته کړل
تاراواړولې څه په شا سترګې



غـــتـــې غـــتـــې دې بيـــدلې مـــاکـــتـل
په گـــريوان دې څـــڅـــيـــدلې مـــاکـــتـل
په سلـگـو سلـگـو کـــښـــې زه دې يادولـم
په ځنـگون چې نولـيـــدلې مـــاکـــتـل
ســـتـــا دمخ ســـورگلې پاڼې پاڼې توی شـــو
لـکـه پاڼـه زيـږيـدلـې مـــاکـــتـل
زولـنې يې ســـتـــا وېښـــو تـه اچولـې
تا دلـړز چيـــغـــې وهلې مـــاکـــتـل
تاتـه فـــرق وو مـــعلوم په نـن پرون کـــښـــې
اې چنـاره !ســـوځـــيـــدلې مـــاکـــتـل
مـــاگـــريوان ريـخـــې ريخـــې په بې وســـی کـړ
تـه ســـرتوره ژړيـدلـې مـــاکـــتـل
درنجـــو پـولـې دې جـــوړې وې تـرزنـې
لـه ناکـــامـــه خنديدلې مـــاکـــتـل



زه به ستا د مخه سترگې څنگه اړومه
تا به څنگ پريدمه، بل به څنگه خپلومه
مينه د پښتون خو په ټول عمر کښې يوځلې وي
زه خپله پښتو به څانگې څنگه شرمومه
ستا ښکلې څيره چې مې په وينه کښې اغږلې ده
دا به ترمرگه په څه شکل هيرومه
داد کانې کربښه ده چې ستا يمه نو ستا يمه
وي به آخري سلگۍ خو تا به يادومه
ستاليونۍ مينه که روزي چيرې زما نه شي
زه پدې دنيا خوشې بيا اوربورې کومه



سر دې پر ځنګون کړو او سودا یووړې

کومو ورځو شپو وایه رابیا یووړې

ماته دسلګو سلسله نه شوله

هی څه دبیلتون بدې بلا یووړې

سره ګلاب دمخ دې لاړو زیړ شولو

لاړې خزانو نیمه خوا یو وړې

ماشوندې جدانکړې لاهو شومه

ته دې ګلې ورځې او حیا یووړې

داویجاړې سترګې یرول کوي

دې نه هغه نور او مستی چا یووړې



زما تیاره ماښام سبا وګڼه
دا مې ډېره ډېره بله رڼا وګڼه
زما کاته په سوو سترګو تاته
دلیونحالو مشغولا وګڼه
زما ژړا په ژړا مه حسابوه
زړه کړه دو که او دا خندا وګڼه
په آشنا سترګو دې پرونی راښکه
ماله ناکامه نا آشنا وګڼه
که زه دا ستا په کوڅه بیا درغلم
دا مې په هېره یوه خطا وګڼه
زما لا سونه د آسمان په لوري
ستا د سمسورې ورځ دعا وګڼه



دزړه په غــــوښـــو پايـــــدل مــــينه ده

لمبـــه کــــيـــــدل ،چپ اوســــيـــدل مــــينه ده

چې ارمــــــانونــه دژوندون خـــــاورې شـي

په لوندو ســــتـــــرګــــو خنديدل مــــينه ده

مــــــينه ژړا اوســــــوران نـه پيـــــژني

بس په ولاړه دُړيـــدل مـــــــــــيـــنــــه ده

ســــتـــــانوی کــــوردې مـــبــــارک وي تاته

مـــاته دژوند تالاکـــــيـــــدل مـــــينه ده

لوظ خـــــوبه ډيروپښـــــتنو کــــړی وي

په کـــړي لوظ باندې مـــړيدل مـــــينه ده



مه مې پاروئ اوس مې دړدونه اوده شوي دي

سترګې مې ورغلې دې زیمونه اوده شوي دي

زړه مې په خندا باندې دهیچا تړقانه کوي

خاورې ایرې پاتې دي اورونه اوده شوي دي

ته په ژړا سرې سترګې بیا مه رااړوه ماته

نن دمرګ په خوب مې پرهرونه اوده شوي دي

مړه شو احساسونه مې دمینې انتها وشوه

ښکته کړه شهباز غوزار تارونه اوده شوي دي

کوم دیوال ته وګورم په کوم بُتکي سودا وکړم ؟

چُپ دهدیرې په شان چمونه اوده شوي دي

نن دې تورانکې ژبه وګنډه ماته چیره

اوس راسره غیر کښې تیریادونه اوده شوي دي



ته چې په سلګو سلګو زما خواله راغلې يې
دا په مينه ننګ دی په پښتو رارسيدلې يې
کاش چې مې ستا اوښکې په ښو باندې راټولې کړای
ته په بيلتانه کښې څه ناترسه ژړيدلې يې
دا لنډه موقع چې په سرو اوښکو کښې لاهو نکړې
شوندې دې جدا کړه خدای د پاره ولې غلې يې
زه ستا د جذباتو په خاموشه ژبه پوه شومه
ته جوړې په لاره کښې پردو خپل ليدلې يې
لږه رانژدې شه چې دې دواړه سترګې ښکل کړمه
ته د تهمتونو نه ډاډه راتيروتلې يې
اوس به په آرام باندې مې ساه په ځنکدن کښې ځي
ما په مړو سترګو آخري ځلې ليدلې يې
دومره قيمتي خو دا زما خاورې ځواني نه وه
ته لکه ډيوه چې په لحد مې سوځيدلې يې



بهير داو ښكو مې قلاره نه شو
دامې د زغېر تمامېدو نخښې دي

كاواكه زړه چې مې په واك كښې نكړو
دامې د رخو دو ركېدو نخښې دي

كه څوك پوهېږي نو زما په خندا
دبې گودره ډوبېدو نخښې دي

بانه چې ستا په غم درانه وينمه
دامې د زړه دورانېدو نخښې دي



پاتې زنګیدلو له زما اوږده فکرونه شو
مه راځه اختره! چې ساړه واړه تالونه شو
سترګې مې وریتیږي ستاکوڅې پله چې ګورمه
ستا هغه لیده واړه خیالونه شو خوبونه شو
ذهن کښې دُنوه مې ستا غمونه اچولي ده
ته خورانه لاړې راته پاتې دې یادونه شو
څومره بختوریې اې نصیبه تلې خاورې خوزه
خاورې دې په ننګ دچا دمینې ارمانونه شو
زړه کښې دخیالونو محلونه مې جوړ کړي وو
تیک دې پرتندې شولو نسکورمې محلونه شو

زه ستا د دړدونو نه په وړاندې عمر نه غواړم

مړ به هاغه ورځ يمه قلار که مې دړدونه شو

پوهه شه عالم چې زما اوښکې ستا په غم کښې ځي

زه وايه څه وکړم زما اوښکې ستا خالونه شو



ستا دمینې اورځه دمړیدو نه دی
داسوی په ژوند درغیدو نه دی
دا اوښکې به غوښې مې له مخه وړي
داسیلاب آشنا دوچیدو نه دی
ستا دچم کوڅې دې لاس په سرشمه
داکارخو زما نه دکیدونه دی
داخیري ګریوان و ځله وګنډم
باردې دتهمت دکمیدو نه دی
ستا یادونه هیرکړم ځنګه هیرکړمه
روح مې لاله تن دبیلیدو نه دی
واوښتې ځپې مې دبیلتون پرسر
مرګ له دې سیوادغمیدو نه دی



ژوند مې دمينې په سودا سوی دی
دخپله لاسه مې آشنا سوی دی
خلک گومان کړي چې سپرلی گرځمه
ځان مې څه داسې په خندا سوی دی
سوی او تاوبه دسکروتو څه وي
دبيلتانه سوی جدا سوی دی



زمـا د مـینې نصـیـبـه لاړه ویرونو کـښې شـوه
ښـتـې د غـاړې شـوله تیره طوفانونو کـښې شـوه
پریږده چې دا خـوشـې لمنه کړم ریښـې ریښـې نن
قـیـصـه د ګلو د سـپـرلو په تالانونو کـښې شـوه
اوس خـو رنها زمـا کـوخـې پله قـسم وخـوړو
په پلوشـو وینځلې شـپـه لاړه یادونو کـښې شـوه
یو مـودې چم او د کـوخـې سـره کـوخـه جـوخـتـه ده
د دیدن هغـه یوه کـوخـه په هیـوادونو کـښې شـوه
څـه ښکلې ابتـداوه له اخـلاصـه ډکـه
راتله راتله ډوبه ژړا او فـریادونو کـښې شـوه



زړه په ژړا باندې مې سپک کړ ښه مې وژړلې
سترګې مې وچې کړې اوښونډې مې ښې وګنډلې
آخري ځل مې ستا له مخه نه پرونی لرکړ
ښه په ځير ځير مې وکتلې بيا مې وشړلې
ستا په کوڅه کښې ارمانونه مې کړل ښخ اوراغلم
خاورې مې توی کړې اوملنې مې ښې وڅنډلې
رباب مې مات کړ اوتارونه مې ټول وشلولو
شهباز مې وغورځوو نغمې مې ټولې ولوستلې
ستا په خطونو مې اورپورې کړ ولاړ وم ورته
ستا د لاس ليک باندې لمبې آخري کيناستلې
ستا د دنيا نه لرې لاړمه بيا رابه نه شم
ستا له کوڅې نه مې رشتې نن واړه وشلولې



زما د مینې ارمانونه څه درد من پاتې شو
د زړه زخمونه مې د ټول عمرزولن پاتې شو
د کیا کوي مې په ورو ، ورو ستا د یادونو څړیکې
لمبې به نه وي خو تاوونه د خوړلن پاتې شو
سالو د سور په سر راخورشو په تندي دې شوټیک
د آشنا سوي ستر غلي دې څه غمجن پاتې شو
ستا د بلې شنډې پرخپلې سپیرې ورځې ژاړي
ستا د کوڅې بُتکي له مانه ګیله من پاتې شو
ما ستا د پاره د سپرلي غوټۍ راوړې وې نن
زما په لاس کښې امیلونه څه غمجن پاتې شو
ته رانه لاړې څه چې واړې د نیا شاکره راته
وختونه ټول راته تاوجنه قهرجن پاتې شو



څو چې ته راځې د بلې سر ته وخت به تلی وي
خاورې به الوځي لیونی به تیرو تلی وي
ستا د ستر ګو اوښکې چې ترژنې را بهیږي څو
ستا خاورې مین به په هیوادو رسیدلی وي
نه به سپورې ستغې د اولس وي نه به زه یمه
خوشې به کوڅې شي واړه کور کلی به غلی وي
وینې به خوراک دې وي درخو د شوګیرې په شپه
د ومره به خپل یاد مې تا ته وروستو پریښودلی وي
تا به په بالښت د سلګو ځلې خیژولي وي
خط چې دې زما په آخرې ځلې لوستلی وي
غم د دنیاګۍ دومره ناترسه ځواني مرګ نه دی
مرکه شه ګوهر نو ستا غمونو به وژلی وي



له مانه په لوندو سترګو آشنا مه رخصتیږه

داوښکو په شیبو کښې خو یوځلې وخندیږه

یوځل آخري غاړه راله راکړه اورخصت شه

چې نه یې دا یساري‌نو ورځه مه ایساریږه

زه ستا دزیړو شونډو رپندی نه شم زغملی

ځه مخ په بله واړو ،راته مخ ته مه ودریږه

دسر دوپټه سمه کړه پړونی دې راټول کړه

له دې چمه چې وځې زړه دې لوی کړه مه ژړیږه

زما داخلاص ډکه دعاګانه سره یوسه

په ژوندکښې ښیرازیږه ،ودانیږه ،خوشحالیږه

دعمرجدايي دمرګ ځپیړي نه [illegible]ه

خوته خو پښتنه یې ته ترې ګورې مه ویریږه



مینه کښې درنې زلزلې پاتې دي
یوه شپه شوه تیره شپې پاتې دي
داړیوه ترخوبه مې ملګرې وي
ماته لا اوردې شوګیرې پاتې دي
ستایادونه زړه کښې لاژوندي ساتم
دومره دخوانۍ مې اېرې پاتې دي
اوښکو !لاڅولۍ مې ډکه نه ده ښه
شپه لاختمه نه ده تیارې پاتې دي
څنګه درته ووام کله ویلی شم
مانه ستادمینې کوڅې پاتې دي
هره تباهي خومې لیدلې ده
اوس مې یوډ قبرخزې پاتې دي



پرې نه ږدئ يوازې مې دخلکو تهمتونو ته
لاس راکړه په لاس کښې دې را ودانګه اورونو ته
داد پښتو ملک دی چې پښتو ګورې کچه نه شي
څوک به بيا مخ نيسي دعالمو پيغورونو ته
غاښ دزمانې يې چې پرانستو باندې وبريښي
راشه داسې کلکې غوټې ورکړو پلوونو ته
ګورې چې دستورته نو خځلې به دلارو شو
ځه چې دواړه شاکړو دستورونو رواجونو ته



ته د رواج په زولنو کښې وې تړلې څانګې
ستا څه ګناه دی زه له تانه څه ګيلې نه کوم
زه اوس ايسار نه يمه پرې مې بړده په مخه چې ځم
زه په تالا نصيب په دې کلي کښې شپې نه کوم
زه يمه ګټه احساسونه زما مړه شو واړه
زړه مې پر هر چا سوځيده اوس دا قيصې نه کوم
ما سره هيڅوک ترسحره سوځيدلي نه دي
ما قسم وخوړ وا تبار په يوې ډيوې نه کوم
سترګې مې وګنډلې مات مې کړ کچکول داميد
طمع له چانه په دنيا د تسلې نه کوم



زه دا ستا له مینې نه څنګ غاړه غړولی شم
ساه لا را کښې شته ده اوس دې کله هیرولی شم
خیر دی که خندا مې په ژوندوني نصیب نه شوله
زه یې د سروا وښکو په ژړا کښې تیرولی شم
ته که زمانې زمانه بیله کړې نو څه وشوو
زه په زړو ستر ګو تیروختونه یادولی شم
دومره لا رشته زما او ستا د زړه ترمنځه شته
دا ټوله دنیا پرې چې زه اوس هم سوځولی شم
ما څخه قیمت ستا د اخلاص او مینې نشته دی
دومره قدر کړلی شم چې سر خپل خندولی شم



وخت دی تیرومه په زړه ماتې زمانې سره
ځان له ورکومه دوکه تشې پیمانې سره
زړه مې دی لوی کړی چې شلوون د رسره نه کوم
پاتې زما څه دي ستا د مینې افسانې سره
دا به زه ساده یم یا اخلاص یا به مې مینه وي
سر مې په زیارت د مینې ایښی شکرانې سره
ته مې بهانه د ژوند تیرولو وې ، ته لاړلې
وایه تیرومه به ژوند کومې بهانې سره



مـــانه به څـــه ومـــومـــې څـــه مـــاته خندا مـــه کـــوه
داســـــوی بازار دی گلې دلـې ســــودا مــــه کـــوه
زه په ژوندانه باندې ســـتـــومـــانه یم ځـــان ژاړمـــه
مـــاته اشـــارت دبنـــو لاندې بیـــا بیـــا مـــه کـــوه
زه خـــاورې ایرې یمـــه له خـــاورې ایرو څـــه غـــواړې
لږه کـــه پوهیـــږې نو تپـــوس هم زمـــا مـــه کـــوه
مـــا پله کـــــه راغلې نو پنډونه بـه دغم یوســــــې
ځـــان دې کـــه په ســد پښـــتنې داســـې خطا مـــه کـــوه
پرېږده لکه سیـــوری چې په تورو تیـــارو ورک شـــمـــه
مـــا باندې زړه مـــه ســـوځـــوه دلې رنها مـــه کـــوه
شړنگ اوس دبنگړو مې پرهرونه په زړگي کنبې کړي
دغـــه به احـــســـان دې وي چې دلې شـــنـــا مـــه کـــوه



څـــانګې له تانه ملګرتيـــا پوره شـــوه

زمـــا دعـــمـــر ليـــونتـــيـــا پوره شـــوه

زمـــــــا پـــه ويـــنو دې لاس وويـنـڅـلـو

ښــه شـــوه چې ســـتـــا دزړه ســـودا پوره شـــوه

مـــالـه پـيـــغـــوردې راکـــوواوس وايـه

له چا پوره نـه شـــــوه ؟لـه چا پـوره شـــــوه ؟

پښـتـــو دې ســروخـوري ،وعــدې څــه تـه وايې!

پښـتـنې ســتـــا چې نيــمګړتيـــا پوره شـــوه

کـــچـــه بنګړی وې تاوتـه ټينـګه نه وې

په مـــا دې راوســـتـــه حــيـــا پوره شـــوه



ته چې وختلې پښتنه دومره کچه نه وه
لاس به یې بل چا ځنګه نیولو چې څومره نه وه
ماوې ته له ما چې جدا کیږې اوربه ولګي
نه چرته سلګی وه نه وه او ښکه زلزله نه وه
زړه که دې زما په جدایی څه سوځیدلی وای
دا ځنګه خبره وه چې اور نه ولمبه نه وه
تا په خپلو لاسو چې نکریزې ځنګ زغملې دي
تا ته ولې یاده د پښتو کړې وعده نه وه ؟
ته په تصور کښې دډولی جوړ دوبه شوې وې
ځکه پرتندي د ملامتې دې خوله نه وه
خاورې پرې وروا ړوه ګوهره نوم یې ماخله نور
تاچې له چامینه کړه هغه جوړ پښتنه نه وه



وگوره نکریزوته ،رنجوته ،سرې جوړې ته دي

وايه مينه داسې وې اوکړې وعدې داسې وي

تاخوبه سوګند خوړوچې ستا په ننګ به مړېږمه

تاچې دي څه کړي جوړې ننګ پښتنې داسې وي

تاچې په کږه ليکه تندي له ټيک راوستی دی

تاچې به ويلو نو سنبال جنازې داسې وي

سره بنارسۍ کښې سرې ډولۍ له چه اوچته شوې

جوړې دمين جامې په وينو خوشتې داسې وي

ته چې کله لاړلې دخيرپه ډيرۍ کيناستې

مينه کښې تاله دننګيالۍ اديرې داسې وي



تاپرو ... سم خورو چې تاسره منې مینه ده
لږه مخامخ شه چې نن چاسره دې مینه ده
نن خودې دا دواړه سترګې ځمکه کښې ټومبلې دي
خو به داسې ګورې چې زما سره دې مینه ده
س ابه رنګ جوته کښې زړې نخښې ولې نه شته دي
واړه دروغ وايې چې زما سره دې مینه ده
دانکريزې ،سره جوړه اوسره ډولۍ خوهيڅ نه دي
ښه !وايه ميرمنې په رښتيا سره دې مینه ده
هاغه پيغله خاورې شوه چې ماسره يې مينه وه
ته له کومې راغلې او دچاسره دې مینه ده
زه څوک لټومه چې په اوښکو مې شريکه وي
ته خو ډيره خانده دخنداسره دې مینه ده .



ستا د یاد سکورتی دې بلیږي
زړه مې پې تیکه تیکه وریتیږي
تاچې هیرومه لا رایاده شي
دې نه چې به ځانګې څه جوړیږي
وایم داچپه وه دغم تیره شوه
ګورم بیرته بیا رابیریږي
ما چې ورته ټول عمر کتلي دي
څنګ به هغه سترګې مې هیریږي
ستانه چې بغیر دنیا ته ګورمه
سترګې مې په هیڅ نه خوږیږي
ورک دې شي دا پیندې بنداونه ټول
ساه مې په عالمو کښې ډوبیږي



گــــرځم په هغـــو زړو چمـــونو کـــښې
چرته يې ؟ په کـــومــو هيـــوادونو کـــښې
راغلمـــه خـــوته چرته کـــښې نه ښکارې
ونښتـــې په کـــومـــو جنجـــالونو کـــښې
زړه دې جـــوړ زمـــانه رغـــيـــدلی دی
نه ښکـارې په هاغـــوبور جلونو کـــښې
بيـــا چې پښـــتنه ځـــانته ونه وايې
داســـې پښـــتنې وي په خـــوبونو کـــښې
وګـــوره لږ مـــاته زمـــا مـــينې ته
داســـې پښـــتانه وي په ننګونو کـــښې



چې مینه یې ریښتیا وي زلزلو کښې به راځي
په زوال او په زړلی، په شرک شیبو کښې به راځي
د مینې لیونی چا اړولی دی د لارې
چې وخت د دیدن راشي سرو لمبو کښې به راځي
د ورځې که راتلی نه شي د ننګه او د شرمه
پرونی به په سر کړې تورو شپو کښې به راځي
که ساېې آخري وي خو زمانه چې خبر شي
دکته به راټوپ کړي په سلګو کښې به راځي



دبې کېنې پښتنې ، کچه لوظونه واخله
ما په قلاره پرېږده ، دا خپل يادونه واخله

لږدې ګرېوان ولټوه ، دې کښې دې مخ وګوره
مادرګوزار کړل واړه ، هن ! خپل خطونه واخله

زما پوښتنه مه کړه ، زه دې اوس څه لګمه
مابيګا نه څه کوې ، ما نه لاسونه واخله

ماته په جاروواېه ، چې زه دې نه پېژنم
ماته پرمخ باندې نن ، پردې نومونه واخله

نکرېزې هم پورې کړه ، رانجه دې هم لګوه
په نوې لاره دژوند ، ځه قدمونه واخله

ماته په شامه ګوره ، مامه بله مه راځه
دخلکو خولې غلې کړه ، داتهمتونه واخله

زما ارمان څه کوې، ستا دې سودا پوره شي

زما ژړا څه کوې ستا دې خندا پوره شي

زما به مينه څه وه، زما به څه اخلاص و

خاورې پر ما به دچا، څه نيمګړتيا پوره شي

شاته دې څوک پاتې دي، شاته به څه له ګورې

هيرشي نومونه پردي، چې مدعا پوره شي

ښه مې پيرزو دي پرتا، بد به دې ونه غواړم

ستا دې ارمان وريژي، ستا دې دنيا پوره شي

کله خوبه وايې، چې دا ګوهر لاڅوک و

مينه کښې داهم راځي، آخر به دا پوره شي



ته به تیـــرې ورځـــې یادوې ځـلـه
چاســـره بـه مـــینـه زړوې ځلـه
مـــینه به دې کـــړې وي خـــوداغ نـه يې
ولې بـه ســرې اوښکې څـــڅـوې ځله
مخ باندې زمـاڅـــپـــیـړې وشـــماره
ســترګـــې اوس د شـــرمـــه ټیـــټـوې ځله
زه به دې څـــه ومـــه اوس دې څـــه یمـــه
مـــاباندې زړګـی بـه ســـوځـــوې ځله
مـــانه خــــوپـړده تـالـه پـکـارده اوس
مـــاپـردې تـه مـخ را اړوې ځـلـه



بنګړي دې مات شو، اوفريادونه شو
سترګې سوداشوې، رانجه غمونه شو

سالود سردې پرځمکه پريوت
ليونی مينه، سوې سوچونه شو

شونډې دې مړې شوې خندادې توی شوه
مخ دې خزان شو مړاوې ګلونه شو

ډوبې بالښت کښې پټې سلګی شوې
لونده په اوښکو دې مړوندونه شو

سپوږمۍ پناشوه تياره خوره شوه
آشنا رانغی په ويرچمونه شو

نکريزې توی کړه، خالونه وران کړه
اختر په شاشه، سناړه تالونه شو



کوم خبرې د خیالونو سره
لاړو کوڅو کښې دیوالونو سره
زما د پاره په دنیا کښې څه دي
وخت دې تیریږي ستا یادونو سره
چې تعلق مې ستا د نوم سره وي
ژوند مې دې خوښ د تهمتونو سره
ډیوه د مینې به دې بله ساتم
که ژوند تمام شي ارمانونو سره
اوښکې مې څاڅي له چشمانو ښکته
په مصلې د رکاتونو سره
دا خوشحالي به داختر لویه وي
چې روح مې لاړ شي ستا غمونو سره
ستا د خط هر ټکی ورانیږي ګلې
زما د اوښکو بارانونو سره



زړه مـــې داســـې رپي زلـزلې جـــوړې راځـي

شـپــه داســې د رنیــږي شـو گـيــرې جـوړې راځي

نـن په نـاخــوالی چې مـــې خندا شـــونډو له راغله

ښکاري چې داوښـکو قـــافلې جـــوړې راځـي

سـرې لمبـې داورمــې په لمدو غــوښـو گـرځيــږي

مــخــې ته رابيـــا ســتـرگــې ناغــې جـوړې راځـي

ســـتـــا الوول زلفـــې نـن دانه وانه ځــــرېږي

أف دبيلتـــــانه تورې تيــــارې جـــوړې راځـي

لاس چې خـپـلو گـريوو ته اوچت شـــه دگـــوهر

ســـتـــا دلورسلگی وړې وړې جـــوړې راځـي



تـه چـې رانـه لاړې نـو وخـــــتـــــونـه ژړيـدل

احسـاس دجـدايـۍ کـښـې مـې خـيـالونه وريتـيـدل

سـتـا ځـوږنـد و سـتـرگـو کـښـې ژړۍ وې اويزاندې

پـرمـخ دې ســـــره گـلـونـه زيـړيـدل اودوړيـدل

پرونی دې راښکلی شو په ځمکه بې خودۍ کښې

لـه هره دروند قــدمـــه دې ســـوچونه تـاويـدل

ســـيلۍ دبيلتـــانه شــولې ببــرې والوتلې

ســتــا ښکلي قــدمــونه مــې په وړاندې ورانيـدل

طوفـان دسره واوښتـه مـالاس په سترگوکـيـښـود

دصـبـر طناووشليـد سـيـلابونه ځـخـيـدل



نوردي پاتې نه شولو په سترګو خندنو کښې
سوي دي باتې رڼا دې نه شته په ډيوو کښې

تاله خوبه کاردی چې سرمخ له دنيا ونغاړې
ته لاڅنګه ګرځې په وطن د پښتنو کښې

زه به مبارک شه درکومه ستا په ننګ باندې
چيرې خوبه مخې له مې راشې په کوڅو کښې

ستا اوزما مينې ته مخلوقې پسخيدلې به
هغسې خبرې زما ستا دي په حجرو کښې

لږ غوندې په ګريوو کښې سرټيټ کړه فکروکړه لږ
څومره څه رښتيا وو ستا په مينې په وعدو کښې

لاسوته دې وګوره که شک زما په خون دې وي
ويني مې دي ګډې ستا پدې نکريزو سرو کښې



تاسره چې تیرشو ښکلي ښکلي څه وختونه وو
ښکلي ماښامي وواوڅه ښکلي سحرونه وو
رنګ دبهارونو مې جذباتوکښې ګډ شوی وو
ستادلوپټو په شان رنګینه مې خوبونه وو
ټوله دنیاداسې ښکاریدله چې ګډاکوي
بل هره کوڅه اوپه هرچم کښې مشالونه وو
هرڅه مې هیرکړي وواومخ مې ستا په لوري وو
ستادمخ زیارت باندې دسترګو مې پیرونه وو
ستا په تصورکښې به مې ټوله شپه شوګیره کړه
څومره دې خواږه اوږده اوږده فکرونه وو
څړیکونه دزړه به مې ښکالو ستا دبنګړي خته
ګریوو کښې زرغون مې ستا دزلفو لونګونه وو
اوس چې تش میدان ګښې چارچاپیره ځغلوم نظر
داسې معلومیږي لکه واړه چې خوبونه وو



بیـــادرته دریادې څــه قـــیـــصـــې شـــولې

ډکــې چې دســتــرګــو دې کـــاســـې شـــولې

ســــرتــه چې ځـنـګون دې اړم کـــــړی دی

دادې څــــه بیـــدارې وســــوســــې شــــولې

ولــې دې وجـــــــــود پـــه رپـنـدې دی تــول

پورتـه دې پـه زړه کـــومـــې تیـــارې شـــولې

شــــونډې وچې دې پـتــــرې کـــــوې

تـاو درنـه داخــــــه بلې لمبـــــې شـــــولې

تـه به وایې تندرکــښـــې ســپـــوږمـــۍ شــولـه

خـــرې دســپـــین مخ دې پلوشـــې شـــولې

ســــردې شـــو ســــرتورســـالو دې پـریـوتـه

ســتــــرګـــې دې ډیوې دهدیرې شــــولې



مـــادهمـــيـــشـــه دپاره ســـتـــا داكـــوخـــه پريښـــوده
مـــا پـه تـا تړلـې دعـــمـــرونو كـــبره پريښـــوده
وادې خله په بيـــرته خـــپل لوظونه اوخطونه خـــپل
اوركـــړه ورته پورې چې دې خـــپله وعـــده پريښـــوده
زه اوتـه شـــو داســـې بيګانه لکه چې خـــپل نه وو
ته چې ګـــيله وركـــې شـــوې نو مـــاهم ګـــيله پريښـــوده
تيـــره مـــې زړګي تـه دلوی صـــبـــر پـخـــه كـــيښـــوده
مـــا ســـتـــادخـــيـــالونو دیادونو رشـــتـــه پريښـــوده
ښـه شوه چې اوربل دې شولو خوراولاس دې سره شولو
خيـــردی كـه نيـمګړې دپښـتـــو دې قـــيـصـه پريښـــوده
واخله آخـــري مـــبـــاركي دنوي كـــورله مـــا
ځـــه پـه خـــپله مـــخـــه مـــاهم ســـتـــا لوپـتـه پريښـــوده



لاس چې سره کېدل دي نوته ويښه که اوده وې
خور چې دې اوربل شه نو خندل دې که خپه وي
څومره دې پاخه لوظونه کړي وو په ژبه
وخت چې دازميښت شوله بنگړي نه هم کچه وې
دومره مې باور وستا په مينه پښتو باندې
ماوې چې ډولۍ له ی پاڅولې ته به مړه وې
ډېرې ننگيالۍ دمينې پت کښې خاورې شوې دي
خلکو دخولې اورم وايي ته هم پښتنه وې
نن و م چې مخ مې په کفن کښې ستا هم نه ليدای
کله داسې وخت و چې دځان راته خوږه وې



غم به دې نچوړ کړي څانګې غم سره آشنا مه شې
زه دِ بريمه خاورې ايرې ته لکه زما مه شې
ماستا له بيلتونه ټولې اوښکې صدقه کړلې
ستا خندا نصيب شه ،ته آشنا هم له ژړا مه شې
څه!دا خترلوبو کښې همزولو سره بې ته څه
ته زما په شان له اخترونو نيمه خوا مه شې
پريږده چې يوازې د زړګي غوښوته ناست يمه
ته سمسوره اوسې په ځوانۍ داسې تالا مه شې
زه داستا په مخ درنجوپټولې زغمې نه شمه
مابه شنه لمبه کړي ،رانژدې زما ترخوا مه شې
بيا به داسې څوک وي لکه زه چې پرې خوايخه کړي
ماسره نصيبه!په ژوندوني راپخلا مه شې
دې خاوروايرو کښې يوه ذره د ټوکيدو نه شته
ماپله که نيت دې وي سپرليه چيرې رامه شې



تالا دې کړم زړ ګیه ستا سودا بس دغه وه
په وینو کښې ترسخیږه انتها بس دغه وه

سیلۍ شولې ببرې په میرویې پانې تویې کړې
قیصه د بیلتانه دوریت لالا بس دغه وه

په څنه کښې د پیغلې یوجمپکه او بیا خاورې
سپرلیه !راته وایه ستا خندا بس دغه وه ؟

دوریځو په تیارو کښې څړیکه پورته شوه پناشوه
زما د نصیب تهوله رڼا بس دغه وه

یو څاڅکی دې رانه کړ ،چې وی ستونی مې لوندکړی
د مینې اباسینه! ستا غوغا بس دغه وه



درنګ ساعت غوغا وه سیواهیڅ نه وو
پورته شوې لمبې لګې بیاهیڅ نه وو
شمعې نه چاپیره څوچورلکه وو
خاورې هوا یوورې په شاهیڅ نه وو
داسې بیلتانه لمنې غوڅې کړې
ستازما ترمنځه آشنا هیڅ نه وو
تاسره چې ومه دنیا هرڅه وه
ستانه راجداپه دنیاهیڅ نه وو
زهر وو یااوښکې زما خپلې وې
نورڅه په کاسه کښې زما هیڅ نه وو



بې تادقيامت شوګيرې تيرېږي
په زړه مې څه يخې څپې تيرېږي
بې تا په ژوندون يې زه نه حسابوم
بې تا څه د مرګ ورځې شپې تيرېږي
چې ته شوې ايساره په څه شوې ايساره ؟
پرزړه مې بلاوسې تيرېږي
ګومان پرې کوم ،دې ستاکړې دقدم
په خواکښې مې غلې ورمې تيرېږي
په شپه د بيلتون زه يوازې نه يم
ستايادسره شي لړې قافلې تيرېږي



لوخــــره ،لمبــــه ،ســــره اورونه دې وي
رنــې رنــې اوښـکــې دړدونــه دې وي
هرڅـیـز رانه یوسئ په کــارمــې نه دي
کم بخـتــو دمــینې یادونه دې وي
ضــرورڅــه نه ده دشــرابو کــاســه
دزهرو دې وي خــوجــامــونه دې وي
خندا کــه شــوه قــات ،نوخنداورکــه شــه
ژړلی خــوشــې ســره ویرونه دې وي
کــه مــینه تالاشــوه اوخــتــمه قــیــصــه
بیلتــون خــودې وي تــالانونه دې وي
ډنډرلوغــړن ،پانه پانه شــوه توی
زولونه ،ســیلۍ ،جــپــړونه دې وي
دنیاخــوبه مــاځــوانېــمــرگ لري یاد
په دارمــې دوینو ډنډونه دې وي



ستـــــــــرې دډېروشـــوګـــيــــرو اود شـــــوه
څـــــــه په تږتکو ،اســــــويـلـو اوده شــــــوه
سخ يـې لاهغــــــــســــــې په اوښکولـونـډ دى
څـــانګه په منځ کــــښـــې دسلګو اوده شـــوه
پــه تش تـــورکـټ يــې په بــازو ايـښــى ســـــــر
دخـــــــپلې مــــــينې په ايرو اوده شــــــــوه
په مخ يې هغــــســــې زعــــفــران خـــواره دې
اُف !چې لـډ کـــــومـــــې انـديښنو اوده شــــوه ؟
ســـــريې ســــرتورلوپټـــــه ښکتــــــه زانګي
څنګ ســــيــــادلـه نن خــــاروا وده شــــوه
بې کــــوره ســـاه کــــښــــې يې چړې غــــرېږې
اوده شـــــوه څــــانګه په *چا پـوا وده شــــوه

*غني



نه شولې خوږې مې په هېچا سترګې
ګورمه چاپېره څه بلا سترګې
ماخو ستا په مینه چاته نه کتل
ماته غوړېدلې څه دنیا سترګې
داڅنګه بدلې په اسانه شوې
ماوې نه بدلېږي چرې دا سترګې
نورې پښتنې به لتوم څله
بس دي! اخرې دې وي دا ستا سترګې
پوهه مې دمینې په پایاو نه شوې
ودې نه لیدلې ښې زما سترګې



نه به خاندې ولې د خنداسره جوړیږي
زه که شومه خاورې خیردی ته خوښیرازیږي
ستالیونی مینې ته چې کله مې کتلونه
ماوې که جداشوې خدای خبرکه وپایږي
مابه باورځله پښتنې باندې د ننګ کاوه
زه که وی خبرچې سرې جوړې ته خوشحالیږي
ګتمې دیوالونه به پیغورپیغورنارې وهي
ته چې په زړوکوځوکښې بیا کله تیریږي
ته به په کوم مخ باندې زما په کوځه بیا راځې
ته به دې دخپلو ناکړدونه نه شرمیږي ؟
تاخوزه وژلی یم تبی دې پورې کړې دي
اوس به مې دشوم له وریجوځله روستوکیږي



سترگې اوس نورې غړولی نه شم
داتماشې نورې زغملی نه شم
داخه دلړزاودناکام ژوند دی
زړگی مې ژاړي خوژړلی نه شم
چیرته ناڅاپه به ستا نوم واخلمه
دویرې حال چاته ویلی نه شم
ماله دادوه شونډې گنډلې ښې دي
تابه عالم کښې شرمولی نه شم
څانگې ته څوک دې په رموز ووايي
چې زه يې نوره يادولی نه شم
دومره مجال زما دزړه نه شته دی
پښتنه بله ازميلی نه شم
ماته زړې قيصې څوک مه يادوئ
نورې دزړه وينې گوتلی نه شم



چادې درته ویلي چې برباد یمه

نه پښتني! زه خو ډېر آباد یمه

تا نه به زه ولې څه ګیله کوم

ستا د لاسه ډېر په زړګي ښاد یمه

دا اوښکې خو اوښکې څه د غم نه دي

دا خو هسې ژاړمه نامراد یمه

تا سره زما رشته به څه وي لا

ته د چرته زه د کوم هیواد یمه

داسې دې پر مخ څپېړه راکړله

کله خو په دې به دې هم یاد یمه



څنګ به او چتیږي زما سترګو ته ستا سترګې
تاخو خاورې کړې په خپل خیال دي زما سترګې
ځمکې کښې وي ښځې چې پښتو يې شرمولې وي
نیغې برندې ګورې د پښتو دوفا سترګې
چالوظونه مات کړل ، څوک په پت د مینې خاورې شو
ګورې له چا پیره يې د ټولې دنیا سترګې
ستا سترګې د تندر په اوبو باندې وینځلې دي
ودې شرمولې دا زما د حیا سترګې
دومره لیونۍ مینه به بیا چرې ونه وینې
ډیرې به دخوانه ووینې دبل چا سترګې
تارانجه په سرو سترګو کښې پورې کړل اولاړلې
وروستو څه خبرېې په څه حال دي دچاسترګې



تا ته چې نن گـورمـه نوسـتـرگـې مـې ړنديږي
مـا ته هغه تيرې ورځې مـخکښې مـخکښې کيږي
سـتـا پـه دوا ړوسـتـرگـو کـښـې دنيـا زمـا دمـينې وه
نـن چې ورتـه گــورم بيـگا نـه پـه مـــالگيـــږي
سـاه دخــوشـحــالي نه مــې خـتـه چې ته به راغللې
نـن پـه رپـنـدی يـمـــه زړگـی مــــې ټـول دوړيږي
ډيرځـــه دويـلـو دي خـــوهيـځ ويلی نـه شــمـــه
داســـې هـواگـيـــريـم چې مـــې ژبـه نـه غـــړيږي
سـتـا پـه مـخ گـړدونـه دي زمـاسـتـرگـې ډُړجنې دي
مـــا ته ســتـــا پـه مـخ زمـــا خـــالونـه نه ښکاريږي
دامنگولې ،دا اوربل اوداســتـرگې پردی شـولې
ځــه !ځـانـگې ورځـه گنې زړگی مــې نورډوبيـږي



دامي په غوړو کښې ښکاله خوځه آشنا وه
لکه په چم کښې لاس په خوله څوک تږخيدلي چې وي
داتربتکيا دکوڅې دقدم نخښې دچا
لکه په زړه يې وي پښې ايښې اوڅوک تلي چې وي
دديوالونو لوندې ګتې په رنځوکړې
چادرې مينې کوڅو پورې ژړلي چې وي
داسې ښکاريږي لکه دلته ودريدلي چې وه
دخپلې مينې شنو خزو ته يې کتلي چې وي
نرۍ نرۍ دوبې سلګۍ مې کړنګيدې غوړو کښې
لکه پرمخې په پالنګ څوک پريوتلي چې وي



لا ړه شــه هزار ځلې خــوږوند به نیـمــه خــواکــوې
هرڅــه به دې خـپـل شي خــوارمــان به تل زمــاکــوې
دامـــینه اخـــلاص به په څلورکنجــه ونـه مــومــې
زه به چیـــرتـه نه یم تـه بـه مـــا پســـې ژړاکـــوې
خـــوربـه دې اوربل شي اونکریزې بـه دې پورې شي
پټ به لـه همـــزولو تـپـــوســـونه زمـــا بیـــا کـــوې
داد سره سـالـو رنـګ چې لـه سترګـو نه دې لرې شي
زړه کـښې بـه د تیــرو ورځـو څـه ناڅـه سـوداکـوې
نوم چیــرتـه پـه پـینـډه کـښې زمـا بـه چاا خســتـی وي
زړه به دې درزا کـــوي ،کـــاتـه بـه پـه غــلاغــلاکــوې
خیال کښې دې زما سوې ځواني چې چیرته وګرځي
څنګه په بالښت به سـرلګې څنګ به خندا کـــوې
واړه تیــروخـتــونـه بـه ګـــریوان تـه دې لاس واچوي
کلـه اراده دهیـــــرولـو چې زمــــا کـــــوې



ماله داوښکو دې پیالې ساتلې
ولې ساقي ماله بل جام نه و
له رېندو شوندو څه ونه وتل
نن پرې دمیني زور سلام نه و
په ښو اوښکې ځليدې څڅيدې
په ناغه سترګو کښې پيغام نه و
ستا په ورتلو خومې دنیا ورانه شوه
ستا په راتلو هم څه آرام نه و
ماچې بې اوښکو وې دوه دی خوړلې
بخت کښې مې داسې يوماښام نه و



څه داسې اخلاص پسې به تول عمر رندیږي
دا مینه یادی به په سکروتو به رغیږي
ډکه به څولۍ دې زمانه دخوشحالۍ نه کړي
بیا به تیروختونو ته په شاګورې پسخیږي
زه به دې اوس ګورم چې د ښنې کېږې وږې نه شي
کله دزړې مینې کوڅوکښې چې تیریږي
دادزمانې مینه ،زما مینه چې تول نه کړي
دامې دی باورچې په سروسترګو به ژړیږي
داګیله به نه کړې چې مې سترګې درنه واړولي
کله دژوند لاره کښې که ماسره مخ کیږي



لاره دې خطاکـــــــړه څنګه راغلــلې
غـلــه دزړګــي وايـــه څـلــه راغــلــلــې
چوپه خـــوله ګنډلې رخـــصت شـــوې وې
بيـــــرته غلې غلې چپــــه راغـلـلې
څـــه وپارولې چې مـــجــبـــوره شــوې
بيــــادې دنيـــا نه پتـهـــه راغـلـلې
مـــاخـــو پرزړګي باندې پښـــې ايښـــې وې
خـــاورې به اوس يوســـې څـــه ته راغللې
داکـــورخـــودمـــيـــې اديره ده ســـتـــا
څـــانګې داپه کـــومـــه مـــخـــه راغللې



ستا په اوښکو کښې غورځیږي زما مینه
درنجو سره خوریږي زما مینه
توري سترګې دې ورغلې په کوګالو
بې کفنه جوړښخیږي زما مینه
پانې پانې به ځولې کښې راڅیري شي
ستا پرمخ باندې زیږیږي زما مینه
لکه پاتې آخري سلګۍ د ژوندوي
ستا په شونډو کښې پرږیږي زما مینه
لیت لګولي زمانې دي لوپټې ته
زما ورانډې سرتوریږي زما مینه



دا به دِ یره ښه وای که مړه شوې وای
ستا کفن ،دمینې پرده شوې وای
یوځلې ژړلې به مې داسې وای
بیا چې له هرغمه دمه شوې وای
یا که بیا ژوندۍ وای اوخوشحاله وای
زه چې بنده نه وای گټه شوې وای
یاخو چې ترمرگه مې ملگرې وای
یاچې له اول پسته شوې وای
چابه ته له خپلې اړولې وای
ته که چرې لړه کلکه شوې وای
وینه به زما دې بیا څښلې وای
ته خو به یوځل پښتنه شوې وای



زه په نصیبونو مات تندی یمه
دغه هم ده ډېره چې ژوندی یمه
تاسره مې ورځې تیرې کړې دي
ستر گو کښې دچاخو به ازغی یمه
ستاغمونو هرڅه نه وښکلی یم
وایې هر سړی څنګه سړی یمه
ستاله یاده څه وځي پوهیږمه
بیا دې هم یادوم ښه لیونی یمه
داسې څوک پردی خوراته وښیه
زه لکه چې خپلو کښې پردی یمه
خوښه دهوا چې مې اوري چیرته
زه دایروخاوریو ډېری یمه



لاس راله مه راوړه چې خوب وړی یم
زه د غمونو پیغلتوب وړی یم
زه نه دنیا اونه یم تاوژلی
دخپلې مینې لیونتوب وړی یم
زه خپل زولن زخمونه نه ژاړمه
ستا دناغوسترگو پړسوب وړی یم
دزمانې راله ځواب ښه راځي
خپلې حیا اوسړیتوب وړی یم
ستا په زړگي کښې چې به څه تیریدل
ستا سرې جوړې اوناویتوب وړی یم
خپلې توتې مې بیا راغوندې نه کړې
تانه چې بیل شومه خړوب وړی یم



درته یادیږي به زما خبرې

واړه خبرې درښتیا خبرې

ما ستا پر سر باندې زغملې څومره

په کلي کور کښې د هرچا خبرې

زما خبرې وې د کاڼي کرښې

نکریزو یوړې هغه ستا خبرې

ستا هغه مینه، لیونتوب د مینې

اوس به وي تولې نا آشنا خبرې

چې توله ورځ به یې په طمع وې ته

چیرته به اورې اوس زما خبرې



زمانه پس به د محفل رنگونه نورووينې
گومان مې نه شي چې به داخوندونه نورووينې
تاخوسيوازما دمينې نورليدلي څه دي
ژاړې به هله چې د وخت خويونه نورووينې
درته ياديږي به آخرليونۍ سترگې زما
دژوند په لاره چې يوڅو مخونه نورووينې
دايوڅواوښکې درخصت خوابتدا ده واړه
اوسه ژوندۍ ته به څوڅو گرزونه نورووينې
په دې محفل کښې خالي ځاى ته به بيا بيا گورې ته
زمانه وروستو به دزړه حالونه نور ووينې
زما اخلاص اومينه داشلوون ختمولى نه شي
ته پټ پنا به دگوهر سودونه نورووينې



خیـــژي شنې لـوخـړې چیـــر تـه ســـوځي چنارونـه
بـوی د ســـویـو غـــوښـــو دی وریتـــیـــږي اوریلونـه
دالیـــونـی کـــریکې تورانـکـه هســـې نـه وهي
چرتـه خـــوورانیـــږي دمـــین زړونو کـــورونـه
دادنیـــاورانیـــږي ولې نـه ؟څـــه تـه ولاړه ده ؟
گـــتـــې لوټې پریـوتـل دمـــیني بـورجلونـه
دادزړه تـړقـــا ده کـــه دریمـــه نغـــاره دمـــرگ
څوک پـه سپـین کفن کښې را انغاړي شنه خالونـه
دالارې کـــوڅـــې لکه دورې دچادقـــبـــروي
گـــرځي لا پـه دې کـــښــــې ســـاه ختلي ارمـــانونـه
بیـــا بـه اخـتـررانـه شي نکریزې بـه خـوشتـــې نـه شي
څـــانگې دبڼ پـریـوتلې ،وشلیـــدل تـالـونـه
داستـــرگـې مـــې وباسئ اودا احـــســـاس مـــې ووژنئ
نـه شـــمـــه زغـــملی وریتـــې غـــوښـــې کـــفنونـه



دا یوه شپه دې په غوغا تیره شي
څه په مستۍ څه په ګډا تیره شي
ژوند خولړلی دی په اوښکو واړه
دا د رنګ ګړۍ دې په خندا تیره شي
څه په تیندکو په بُدرو نیکو
دا دپیالو دې په کړنګا تیره شي
چې دزړګي تنا کې کیني لړې
څه په بې خوده مشغولا تیره شي
دچا څیره چې مې دسترګو وځي
شپه په آرام یوه پرما تیره شي



اې ساقي جامونه کړنګوي څله
بیا مې په زړګي اوربلوي څله

ماله ژوندانه نه خیرونه مه مونده
بیا مې ژوندانه ته لمسوي څله

بیا دې په کاره وښکي خندا وینم
بیا مې په سرواوښکو ژړوي څله

مانه خماري سترګې په ډډه کړه
ماته نوي مینه ښندوي څله

بیا به سر د لاندې ترې پریوتی یم
بیا په نوي تال مې خېژوي څله

دابه مې هم شي مات حیا به لاړه شي
غوروکښې بنګړي مې شنوي څله



کړنگ دې د پيالو او شرابونو دی
ماله بس دزهرو څو گوټونو دی
ژاړمه خو سود په ژړانه کيږي
مړه مې بې کفنه ارمانونه دي
ته يې اونکريزې اخترونه دي
زه يم او داونښکو سيلابونه دي
وخت به ستا تيريږي چې دې هيرکړمه
ماته په سلگو لاستا يادونه دي
تازماغمونه بيگانه کړلو
ماسره ستا هغه شان غمونه دي
غوږ خوچرته کيږده خلک څه وايي
هغسې تاله زمونږ نومونه دي



زما داوښکو څڅیدو وخت دی
چې د آشنا رخصتیدو وخت دی
ته په نکریزو اوښکې مه تویوه
ستا خو داوخت د خندیدو وخت دی
ستا به پلو د کجاوې ترمه
که مې د زړه دورانیدو وخت دی
سترګې کړه وچې په خندا رانه ځه
لارې شوې دوې د بیلیدو وخت دی
پرده د مینې آخر ځلې وساته
ستا داوربل د خوریدو وخت دی



زهر مـــــې داســــې په خندا ثــــــبلي دي
وايي عـــالم چې يې رښــتـيــــا ثــــبلي دي
چادزړه ويـنـې چاشـــــــراب وګـــــــوتـل
چاپيــــره ګــــورمـــــه هرچاثـــــبلي دي
زمـــا دســـــرکــــاســـه يې دوه ډوله کـــړه
اوپکښـــــې وينې دې دنيــــا ثـــــبلي دي
په تـيـندکــــو مــــې مـــلامت مــــه وايئ
نن مــــې غــــمـــونه دآشنا ثــــبلي دي
نکريزې دومـــــره رنګيــــالی خــــونه وي
دايې دزړه ويـنـې زمـــــا ثـــــــبلي دي
زمـــا دژوند کــــاســــه نسکوره ښــــه ده
واړه شــــراب ترينه رابيــــاثـــــبلي دي



زه یمـــه راغلی اې ســـاقي په مـــیـــخـــانه
هیڅ مــې په کـارنه دي مـاکـړه مـاته پیـمـانه
اوښکو ته زمـا کـه په مـحـفل کـښـې کـتی نه شئ
زهرراله راکــړئ یوپیــاله اوســیــوانه
زه دهرې پینـډې نـه خـپل غم یمــه وښکلی
مـــاتـه بـرابـر دي آبـادي او ویـرانـه
زه په کـلکـه هیــچـــاتـه آشنا ویـلی نـه شم
مــاته ټول مـخـونه دلتـه لګي بیګانه
خنګه ده خـوشـحـاله په جـامـونو وربریوتې
ویني خـپلې څـښـې خـونه پوهیـږي زمـانه
چا پلیـکې څنډوهه او پاڅـیـده روانه شــوه
پاتې شـوه په زړه دچا نیـمـګړې افـسـانه



تا په پیالو کښې ډوبولی شم
والله چې ښه دې هیرولی شم
ستا د سرو سترګو کتوری دې نه وي
ځان په جامونو غولولی شم
ستا نه لیدو سره څه فرق راځي
زه تورې ګتې ښکلولی شم
هغه به نوروي چې په زهرو به مري
زه یې په زهرو تیرولی شم
په لپو لپو اوښکې ومې څښلې
اوس په سرو اوښکو کښې خندلی شم
دنیه مه خوامیني عادت شومه زه
بغیر له تا هم پایدلی شم



مه مې لتهوئ زه په جامونو کښې ورک شوی يم

زه د بې خودۍ لويو دښتونو کښې ورک شوی يم

ماته د منزل په سر هيڅوک انتظار مه کوئ

زه د ستړې لارې په ګردونو کښې ورک شوی يم

شګې چاڼوې راپسې ځله له لاس وتی يم

زه په خړو خړو سيلابونو کښې ورک شوی يم

چا يوه لحظه لمبه ليدلې چا ونه ليده

زه لکه دستوري آسمانونو کښې ورک شوی يم

پرې مې ږدئ چې سترګې مې همداسې پټې وي

زه د خپلې مينې تيروختونو کښې ورک شوی يم



زه خـــوليـــونى يمـــه په خـــورو نه پوهيـــږمـــه
کله بـه ژړلي مــــــې وي کـلـه بـه خنديږمــــــه
تا تـه مــې څــه ويلي نه دي ته څله پښــه نيـســې
زه خـوگــوتې شـمــارمـه دځـان سـره گــوريږمـه
مـابـاندې زړه مـه سـوځـوئ اوډاډ مـه راکـوئ مـاتـه
زه بـه هـم پريوزم هم بـه خـــپلـه اوچتــيـــږمـــه
داښـکلي مـــخـــونـه لبـــاسي دي لبـــاسي واړه
زه ددیـواله پـه تـوروگـتـو مـشـغـولـيـږمـه
دغــه لـوپټـي اوسـره لاسـونه رانه لرې کـړئ
زه دهرې مــينې لـه اخــلاصــه نـه ويريږمــه



ماته د محفل مړاوي دیوه لګي
ته له دې دنیا تولې خپه لګي
دا محفل چې ستا لکه محفل نه وي
ګوري لکه بُت اوده اوده لګي
ښکاري لکه کار چې دې په هیڅ نه وي
ګیر چاپیره هر څه نه مړه لګي
سوری دې په مخ اوږد یږی د رنګ په درنګ
ته د مازدیګر زیږه نقشه لګي
ستر ګو کښې دې سوې ایرې الوزي
بس دار ملنونو هدیره لګي
مات لکه کنچلکو دبې ارزی چې شي
پاتې یې د لا رویوه توته لګي
ستا په شان زما دنیا هم ورانه ده
ماته لکه ځان هسې خوږه لګي



غم د سـره واوښـتـه اوده اوده غـمـونه شـو

دړد د کـچـه تیـروته قـلارمـې پرهرونه شـو

زوردزړه اوبه شـولو اوصـبـرمـې تمام شـولو

ستړې مې سوداشـوله اوسـتړي مې خیـالونه شو

ژوندیو خوسلګۍ شوې هغه هم خپه مرۍ کښې شوې

ښخ مـې په نکریزو رنګیـالوکـښـې ارمـانونه شو

لرې نه کـتل مـې چې دې ټیک په تندي وخـتـو

پاتې مـې په لاسـو کـښـې د ګلوغنچکونه شـو

مـاچې سـتاکـوځـه کـښـې دبنګړودړې راټولې کړې

مـخـې ته مـې سـتـاکړې وعـدې کـړي لوظونه شو

نه راځي اتبـارمـې پښـتنه باندې اوس سـتـانه پس

مـاته دروغـژن دابـکلي ښکلي ټول مـخـونه شـو



تیــــروخـــتـــونه مـــاته آوازونه راکـــوي
لا ړچې نه شــې مــخکښې قـــســمــونه راکــوي
په ذهن کښې مې بلې شي لمبې چې روستوگورم
سیـخـونه څـوک راواخلي بیـاداغـونه راکـوي
دڅټ نه مـــې چاپیـــره شي رنگیني لوپټــې
بلې دســره څـــوک اشـــارتونه راکـــوي
یـوه یـوه کــــوڅـــه اوهره لاره هریـوچم
دتیــرې مـــینې څــه ناڅــه یادونه راکـــويّ
توتې بنگړي پراته دي په ســینه دچا دقـــبـــر
څوک پورته شي په خیال کښې سره لاسونه راکوي
ستاسترگې راته وایي چې مې هیرې گورې نه کړې
دنیـــا وایـي هیـــرویې ،دارویـونه راکـــوي



ته کــه بې کــینې بېې بې کـــینې ټوله دنیــا نه ده
تاســـره تېرلې تل عـــمـــري څـــه لمن مـــانه ده
ډيرې داســـــې راغللې اوډيرې داســـــې لاړلې
ستــا په شــان په هيـچـا مــې ذره څـه نيـګـرتيــا نه ده
ستــانه ښکلې ډيرې شتــه څوک بله به ملګرې کړم
داليـــونې مـــينه مـــې پيــــرزو هډو په تــانه ده
داسـې ګــومــان مــه کــوه چې تاپسـې به مړشــمــه
دومـــره دخــودوتې څـــه زمــا داليــونتيـــا نه ده
زه په جدايي به دې هيـچـرې اوښکې توی نه کـړم
مـــانه په بې ننګو پســې يوه اوښکه ســيـوانه ده



تالکه داوښکو غـــــــورځـــــولی یم

تـــــازه دړدولـــــی لـــــړزولـــی یـــم

اوس په هره مـــــینه ناویســـــایمـــــه

زه چې یوې مـــــــــینې ویرولی یم

بوی له هراخـــــلاصـــه دلبــــاس راځي

زه یوې اخـــــلاص مني تیــــرباسلی یم

اوښکي یې آخـــرکـــښــــې راپه غـــاړه کــړي

د یروبهــــــارونو غـــــولولی یم

زه به دپردونه ثـــه گــــــیله کــــوم

خپلي غـــمـــخـــورني ســـوځـــولی یم

تاخـــوپښــتـــو وکــړه اومـــاولیـــده

زه دي لـه غـــــیــــــرتـه ژړولی یم



راغلمه په شاباندې اوستا کوڅه مې پرېښوده
ګوتې د زهرو تیرمې کړا وستا قیصه مې پرېښوده

مادقدمونو نښې ورانې ستا په چم کښې کړې
اورمې یوځای وواژه بل ځای لمبه مې پرېښوده

ته میرمن دخوښې یې چې زړه دې غواړي هلته ځه
مادستا په خوښه ستا دژوند کجاوه پرېښوده

بیا به ستا کوڅې ته چرې رانشمه لاړلم
مات کچکول مې غوندکړلو اوستا اسره مې پرېښوده

ته خو دبل چادپټکي ګل وې څه دې ژاړمه
قهرمې په شونډو کړا وستا نامه مې پرېښوده



مخ په بله مـــاړوه زه دومـــره ارمـــانجن نه یم
رنګ دې هسې مـه بدلوزه وړی دې مـیـرمن نه یم
هسې په تلوتلو کښې مې نظر په تا پریوتی دی
نورمطلب ترې مـــاخله غـــرضي دې دلمن نه یم
ستانه وړاندې ډیرې مې په مخکښې تیرې شوې دي
ډیرې به وي ښکلې خــود هیــچـــا آرزومن نه یم
درنګ ګـړی لیـــده دې تـه په یوه زه به په بله ځم
تاپسې به درشم ترکـوځـې دومـره چینجن نه یم
یادو ،نه به ووځـې مـې چې مـا په لارلیـدلې وې
زه چاســره لرې نه ځم دومــره غــرضــمن نه یم
زه دزړه کـمزوری داسې نه یم چې بس مړشومـه
جــمع دې خـــاطرکـــه زه دزړه دلاس دړمن نه یم



زړه چې مې ډوبیږي نوو خاندمه

حال چې مې نوریږي نوو خاندمه

راچې شي په خپلې بې وسی ژړا

ګریوې مې لوندیږي نوو خاندمه

څوک چې داونه وایي چې غمجن یمه

غم دې چې درنیږي نوو خاندمه

آه! د چم ګاونډ د ملامتې نه

خوږ چې مې زیاتیږي نوو خاندمه

دادناخوالی خنداګوهره وي

خلک چې خندیږي نوو خاندمه



خواته مې نژدې شوه اسویلو سره
غوښو غوښو سترګو کښې شیبو سره
خدای خبر په زړه یې کومې لړې وې
پلکې یې تړلې وو د پښو سره
تول پلوڼه غاښو یې چیچلی و
مخ یې ولړلی د رنجو سره
لاس یې لګو و قدم یې اخستو
توله رپیدله اندیښنو سره
اورد ککری نه زما و خاته
لاس یې چې راتاو که د سلګو سره
هیڅ راته یاد نه دي اې ګوهره نور
دواړه په ژړا وو سترګو سرو سره



خوشحالي مې داختر په نصيب نه شته

په پلوسې کښې باندې شليدلى ټال يم

دبيلتون په شنه لونګى ودوړيدلم

زما ژونده! دازه څه درنجو خال يم

دمابڼې په سردرومې تنده نه مري

زه په وأوروکښېن ښخ تږى دوصال يم

دشپلونو څوکې ټولې مې کنډو کړې

أف! په لاره دچامينې ته ليوال يم

دګودرپه ګتواوښکې مې بهيږي

زه ګوهروړى دتيروو ختو خيال يم



ډکه پیاله راکه که وي زهر که شراب
ژوند شوداسې پیتې چې یې نه لرمه تاب
درنګ ساعت له دوړې خوبه کیني دفکرونو
ذهن مې پولۍ دی احساسونه مې کباب
هیرې به پرهرې مې شي هیرې به مې ځړیکې
لړخوبه قلارشي دادسرواوښکوسیلاب
دادنیابه واړه مې دسترګونه فناشي
غم به مې غلط شي ته به وګڼې ثواب
سترګې چې پرانزم خپله ورځه رایادیږي
ماله خپل احساس دی اوس په ویښه لوی عذاب



بیلتون چې راځي ،چې لا ربیلیږي ،کاسې به دستر گوپرمخ رابهیږي

سلگی په وښکو ،لونده پلوونه ،درانه قدمونه به ځنگ اوچتیږي

پرون وو آشنا ،اونن بیگانه ،داسوچ دبرداشت بهردی بهر

نسکورې دیری ،دخیال محلونه ------

یادونه زاړ ،دژوندہ خواږه ،دزړه هیرول دي خوځنگ هیرول

دخپلې ځوانی ،کول دي ویرونه------

ښوییدلی سالو ،سرتوره اوربل ،ژوندی جنازه ده روانه په لار

داخوشې خوشیا ،او ورک منزلونه------

نکریزې شوې توی ،رانجه شوې نور ،لړونه شلیدلي دمینې دتال

روان دي په شا ،مروراخترونه--------



کـــږې وږې شـــبـــې وې چې ترمـــا راغلې وه

کـــونتـــره ســـيلانی وه زول جـــپـــړوهلې وه

غـــرقـــا ولا ړې بهـــيـــدلې اوغـــرقـــاوه اوگـــړزا وه

خـــوبـــيـــا هم ليـــونی خـــپله وعـــده ســـاتلې وه

لوندې خـــوشـــتـــې جـــامـــې وې ورسره تړولې انښـــتـــې

باران کـــښـــې لمبـــيـــدلې څـــانگه څـــومـــره ښکلې وه

ببـــرويښـــتـــه يې شـــړوت وو ،اننگو پورې ليـــوشـــوې

ښـــايســـتـــه بشـــره يې واړه په رنجـــولړلې وه

وجـــودې يخ کنگل وخـــودمـــينې جـــوړتازه کـــښـــې

لنبـــې په غـــرغندووې واوره تړوله ويلې وه



څه کومه زه د ټولې دنیا خوښه
زما خوښه ده یوازې زما خوښه
د هر چا د نظر تول جدا جدا دی
د یو خوښه وي له بله جدا خوښه
چې زما خوښه وي زه د چا پروا کړم
هغه نه دې وي هیچیرې د چا خوښه
دا دنیا به ی بله سیاله پیدا نه کړي
کومه سیاله پښتنه چې کړه ما خوښه
په ځوانۍ کښې به چې څه رنګې ښکاریږي
چې د لاړو د کوڅو ده زما خوښه



داسې رنګينه جوته به چيرته وي
وي به ستا په شان ښه به چيرته وي
ډيرې مې خورې په ژوندکښې وليدې
داسې ليونۍ خوره به چيرته وي
ډيرې سترګې وينم چې *نوتې دي
داسې د حياتونه به چيرته وي
ماسره شريک دې تومتونه کړل
داسې د پښتو پخه به چيرته وي
ستا نه پس دلارې مې ځوک ملګه مه شه
ستا په شانې نره ملګه به چيرته وي
*چې نونه لري ،بې حيا



ځان ته خودې خیال نه دی چې ته څنګه کتل کوې
دا *غربتې سترګې دې راړولې دي خوړل کوې
مابانديې دې مرګ راپورې نه دی چې به وژنې مې
ګوته هم څندې راته ،غاښونه هم چیچل کوې
دابړوېښته دانګونه دې وانه وښتل
ډېرکه په مکیز مکیزپه شادسرڅنډل کوې
اورشه په تاپورې سورسالوزمادښمن شولې
مانه ښکلی مخ درابیاولې پټول کوې
داغوټه لمنې اوس دمینې بیلیدی نه شي
زه هم درپسې یم ،ته به څومره ځغلیدل کوې
مابه څله سواله کاوه دشونډو ښکلوودرته
شونډې بوځوې راته ټوټونه نیغول کوې
*غتې ،دغرګي په شان



په سترګو کښې مې پټه دچاغلاليدلې ده
ښه نښه مې پخه دليونتياليدلې ده
زه رنګ دمينې پېژنم دانښې دي دمينې
په مخ په پټېپټوني مې حياليدلې ده
څه داسې راته ګوري لکه مانه چې پوښتنه کړي
« زماسترګوکښې مينه وايه تاليدلې ده »
زماپه رنګ وهلي مخ به ښه وي پوهه شوې
دائکه په تندي يې ماړناليدلې ده
دپينډې هريوکس ته څه په شک اوويره ګورې
دسترګوپه دې جنګ کښې چيرته چاليدلې ده



مــــاچې وكـــــتل ثووارخطا شـــــوله
پوهــه نــــه زمـــــا پــه مـــدعـــــاشــــوله
نــه شــم ويــلى څـــــــه بـلاپې وشــــــوله
زيړه شـــــوه بيـــــاتنوله پـه رپاشــــوله
يــخــــــه اونــرى خـــــولــه پــې راغــللــه
ســـــريــې كــــړوتيـټ لـره پـه ســــوداشـــوله
زه يــې بيـــــادســـــتنــرگـــــونـه ونـه وتم
پيـنـډې نـه اوچتـــه شــوه يوخـــواشــــوله
ســـتــرگـــې يې بـلنې اوســتـــونه وو
ووپې رســــيـــدمــــه چې زمـــاشـــوله



پرېمې ږده دسروسترګونه څښلوته
لږغوندې نن ستوني لوندولوته
شونډې دې سکروټې دي که سرې لنبې
ګواښمه نن سورانګارېوکلوته
تودمې دخپل تن په تود*هوارکښې کړه
څه حاجت لاسونوتودولوته
ستنادځوانۍ ورږم داسې مست کړمه
زړه مې دی ساقي پورې خندلوته
لاس راکړه اوټينګ مې دملاونيسه
پرېمې نه ږدې څانګې غورځېدلوته
وايه چې دنيادغه دوه سترګې دي
مه ګوره دچابرندوکتلوته
*هغه تودورږم چې دوجودنه راپورته کيږي



ددوا ړو ملگر تیاده په خندا به ی تیروو
کُنجي لا سونه ځو یه بې پروا به ی تیروو
داژوندیو څو لحظې دي او په مینه بیه شوې
زما لیونی څانګې په رښتیا به ی تیروو
زما اوستا پلونه چې لنبې شي یا ګلونه
جوړه غاړه غتی په لیونتیا به ی تیروو
زما د زمایی پوله به ورانه کړو له منځه
ددوو په ځای دیوزړه په تړقا به ی تیروو
زما اوستا د مینې چې نکلونه شي په کلو
دیوبل د مخونو په رڼا به ی تیروو
غمونه به وي ګډاو اخترونه به په ګډه
دیوبل د سرونو په دعا به ی تیروو



پریبرده چې دې زلفې راخورې کړمه

دابې نوره شپې لږې خورې کړمه

پریبرده چې دې اوردشوندو واخلمه

بلې د نصیب خپلې ډیوې کړمه

سرې شرابې سترګې دې راخواته کړه

زه چې وړې سترګې پې مړې کړمه

لږدځوانۍ تود هواړراوبخښه

یخې شوګیرې چې پې تودې کړمه

خپلوکښې بانه چې الوول موشي

پریبرده چې دې داسې رانږدې کړمه

اوښکوته مې ډب لونی مه تړه

پریبرده چې دزړه لنبې سړې کړمه



په ښکلو ښکلو سترګو کښې را بیا اخستی یم

له ځمکې پورته شوی یم هوا اخستی یم

زړګی مې داسې تړاقي وایم ماتې يې پښتی کړې

په خود کښې ګورې نه یم څه بلا اخستی یم

داغوړې ښویه لیچې راغوړېږي چې په مینه

د ګلوډ کوڅانګو جوړ په شا اخستی یم

جوړه لاسونه ی راکړل او د مینې لوزې وکړ

چانړې پښتنې زه له دنیا اخستی یم



ستا سلام د مینې رارسېږي
څو مره پې زما سودونه کېږي
ستا لیکونه څو څو ځله لولمه
زړه مې په لوستلونه مړېږي
دا تکی د خط دی یا که پاڅې دي
زړه مې پې څه ښکلی تکوریږي
ستا تصویر مې مخې ته نیولی وي
څو مره پې غمونه غلطېږي
تا چې لاس راکړی په رخصت کښې وو
اوس یې هم تاوده په ما لګېږي
وایم جوړې اوس دی څه ویلي دي

ستاوينامې غوږوکښې ګړنګيږي

ته يې راسره چې چرته ناست يمه

فکردې زمانه نه بيليږي

ګرځم داسې لاروبازارونوکښې

ماته لکه هيڅوک نه ښکاريږي

داسې مې په زړه باندې خوره يې ته

ځانته زما کله فکرکيږي



مه منع کوه زمانه جام
اې ساقي زه هسې يم بدنام
خلکو مې په لپو وينې وڅښلې
ما باندې شراب دي وي حرام
سدا وبيداري مې څه دخيرنه ده
دی په تينده کونو کښې آرام
پريږده چې په برق ليونی وخاندم
تيرنه شي په اوښکو دا ماښام
پيتې دغمونو زاره چاودی شو
څکه غلطوم ځانله پام
مړې کاد شعور ديوې مې ووژنه
ژوندسره نورنه کيږي ناکام



پاتې شه اومه ځه لیلانن شپه
ماسره شوګیره کادانن شپه
داسې شپه په عمر کښې یوځلې وي
بیابه چرې رانه شي دانن شپه
داګورې وریځې وریدونکې دي
مه وزه بهر په خطانن شپه
واړه تیرې شپې لکه پردۍ چې وي
ده په رښتیا استا اوزمانن شپه
بیابه درته نه وایم چې پاتې شه
مه غورځوه خبره زمانن شپه
نن مې زړه ځه بل شانې درزاکوي
مه ویریږه مابانديې اتبار وکړه
کوزدې کاپروني رابیانن شپه



تا سـره مـې ژبه ده چې سـتـايمه
سـتـا مـينه مـې ژوندى زه پې پايمه
داد پټ پـنا خـبـره نه ده څـه
زه خـويې په جـار د نيـاته وايمه
تا باندې حـيـا زمـارا ته وله ده
زه پښـتـون راوړى سـتـا حـيـايمه
مـا ته ډيرې سـتـرګـې راغـوړيږى به
زه د ټولو سـتـرګـو بې پروايمه
وي زمـا خـبـره به هغـه يوه
زه کـه مـخـا مخ يا پټـي شـايمه
زه به يـو پـوتـى چـرې بـدل نـه شـم
وينې به مـې ټول عـمـر چې دايمه



په زړه مې ليک دي درابيا خبرې
دمې مينې څه بلها خبرې
څه برندې نيغې د ښو خبرې
څه شرميدونکې د حيا خبرې
لکه چې څنګه وه پخپله ښکلې
داسې يې ښکلې دوفا خبرې
څومره پستې وي غوڅې سپينې خوږې
دخيالولې آرښتيا خبرې
دغه مې زړه وچې هغې ونيوه
کله ځايېږي پې سيوا خبرې
غوټې ګلونه سره برغ وريدل
چې هغې کړلې په خندا خبرې



داسالو د سرچې دې ښوييدلى دى
خيال دې وايه ځانګې چرته تللى دى
دا ببرو ېښته دا د ځوانۍ خمار
ما باندې خوتندر پريوتلى دى
هرڅه که مې وکړل واک کښې نه يمه
ځان نه مې ويسانن پاڅيدلى دى
وايم چې دزړه پورې مې ليوه کړای
دومره مې زړګى راپاريدلى دى
ټول وجود کښې ځغلي رېښکې مې
لاس دې راسره ښه لګيدلى دى
شونډې مې په شونډو باندې وترکا
پېغلي نور اختيار مې ګړبيدلى دى



راکړه سره لاسونه رابیانن شپه
څومره ښایسته ده دنیانن شپه
ماځه په زاروګه خدایه غوښتې وه
څومره بختوره ده دانن شپه
نن چې دې په سره جوړه کښې وینمه
ووځې مې دعمرسودانن شپه
ستازما دمنځه دیوال پریوته
ستازمایوه شوه دنیا نن شپه
پرېږده په ځیرځیرچې درته وګورم
څومره لوی ارمان وزمانن شپه
نن مې ایله مینې غیږه ډکه کړه
شوه مې روزي خپله حیانن شپه



څومره ښکلې شپه ده چې اوده نه شي
نن مو دوه په دوه ده چې اوده نه شي
نن به هم د خوب لاڅوک نامه اخلي
نن خوشوګيره ده چې اوده نه شي
دادڅوار لسمې سپوږمۍ وګوره
څه بلها خوږه ده چې اوده نه شي
نن خويه خبرې ترسحره کوو
لاخولويه شپه ده چې اوده نه شي
سر خوپه اوږه دې زما ايښى دى
دامې وسوسه ده چې اوده نه شي



خوري مې دچاسترګې بلاګانې
ګوري څه بې کچه ورانې ورانې
دابشره څه ځانله جدانقش دی
بله به لاوینمه داشانې
داسترګې چې کوموسترګوخوښې کړي
عمر کښې به نه شي بيا پښېمانې
ته چې راسره دلارملګرې شوې
لارې دژوندون شولې اسانې
وايم چې دځان پورې مې تړوکې کړې
زړه چې راته څه وايي ګرانې



ماته ستا په سترګو کښې د مینې دنیا ښکاري
ستا د مخ اینه کښې هرڅه څومره صفا ښکاري
هغه چې زه لولم ستا کتلو نا کتلو کښې
ماته پکښې ستا د زړه ګوتپونه لیلا ښکاري
ترخ باندې چې ګورې په راتللو او په تللو کښې
ماته ستا په چوپ شونډو تپوله د دنیا ښکاري
وګوره لږ ماته چې دازه درته څنګ ګورمه
تا ته به چې څنګه وړې سترګې زما ښکاري
ستا مخ ته چې ګورم داژوندون بیا څومره ښکلی دی
ستا د مخه څومره ګیر چاپیره ښکلا ښکاري
ځارشم پښتنې چې په ادب دې زما سترګې کړې
ډب راته اچولی ستا د سترګو حیا ښکاري



ته يې بې غـــمــــه غم دې زه كـــومــــه

تاته وزګـــاريمـــه نورڅـــه كـــومــــه

وايي دې مـــينــې ته كـــه بدڅـــوك وايي

زه يې په جـــاركـــومــــه ښــه كـــومــــه

په امـــاني دنيـــاكـــښـــې بس دوه ســـترګـــې

پـاتې دانوره دنيـــاڅـــه كـــومــــه

زه به هغـــه كـــوم چې خـــوښـــه مــــې وي

زه دعــــالموخـــوښـــه نه كـــومــــه

زمـــاپـخـــه مـــونږي‌رابيــــاده زمــــا

هســـې هرڅيــــرته تلـه راتله كـــومــــه



لرې لرې وتښتــه خـوبيــابه پســتنه راځــې
نن ستــرگې بدلې کـړه سبــابه په جـرگـه راځـې
اوس خــودرتــه مــينه زمــاهيڅ دپامــه نه ښکاري
بيابه کچکول کړې دواړه سترگې ماځخه راځې
مــادکــوځــې ورځــه پورې کــړی درپسې نه دی
دامــې دی باورچې تـه به بيــاپه دې کــوځـه راځـې
نن خــودخيــالونوپه نيلي دې هواگيــره شــوې
وينم چې به ځــمکې لـه ســبــابـنـه بنـه راځــې
لاړه شــه دالويه دنيــابنــه مــړه خــواوگــوره
بيــرتـه به آخــرترې نه ښــه ســتـړې اومــړه راځــې
دومره مې باورپرخپلې پاکې ساکې مينې دی
مــاتـه به په هرمــيدان کــښـې هرځلې ته پړه راځـې



گورم به دا چې زما مینې ته ونه زیریږي
دې لیوني اخلاص ته بیا چیرې ونه پسخیږي

یو ځلې خیال چې دې دا راشي درنه بیل شومه زه
حال به دې گورم په سروستر گو چې ونه ژړیږي

چې ته ولاړه یې زه شاکرمه روان شم درنه
منم به هله چې پوهې قدرې ونه لړزیږي

داسرې غوټۍ چې دې پرمخ وې غوړیدلې داسې
د تیرو ختونو په سوداسودا ونه دوړیږي

چې زما نوم دې بیا په شونډو یاندې راهم نه شي
د خلکو بیله ځان سره چیرې ونه گوریږي

بیا دروازه چې نیمکښونه کړې زما لیدو ته
زما کتو سره چې تولة ته ونه گړیږي

گورم به دا چې بې زمانه پوره ورغیدې
زما کوڅې له چې بیا راشې اوونه ښوییږي



وایه چې د ومره مینه چاکړې ده
لکه رابیا !تاسره ماکړې ده
دنیا وسونه په ماکړي دي خپل
خوما خبره ورته ستاکړې ده
د تور ،تومت ،دخندني به څه وایې
خو دڅه کله ماپرواکړې ده
ماخپلې وینې دي سوځلې څانګې
اوستا په لارکښې مې رڼاکړې ده
زما چې لاس دې پورته شوی کله
تاته په لپو مې دعاکړې ده
زما خبره وه یوه خبره
زیاد کا ،چې بله چیرې ماکړې ده



ستـــرگـــې درابيــاڅــه ښکلې ستـــرگـــې دي

ځـــومـــره له حـــيـــانه ډکـــې ستـــرگـــې دي

داســــتـــــرگــــې به بـل چاته ونـه گــــوري

دادننگيـــالې پښـــتنې ســـتـــرگـــې دي

ســـتـــرگـــې په ادب چې ورته ټيـــټـــې شي

دادپرښـــتـــوســـاتلې ســـتـــرگـــې دي

بـلـــې پـه هـرپـل راتــه ډيـوې شـــــــولـې

مـل راســـره بـلـې ډيـوې ســـتـــرگـــې دي

چيـــرته يې ســـارې چاپيــــره نـه ښـکارې

ماچې خـوښـې کـړې کــومـې ستـرگـې دي

ســـتـــرگـــونه زمـــاولې شـــرمـــيـــږې ته

ځـــانگې داخـــوهم دې خـــپلې ســـتـــرگـــې دي



ستا لیونی مینې ځان ته کړی یم

ستا اوږدو فکرونو سگه کړی یم

مینې دې څه داسې رنگ راکړی دی

خلکو ته یې سم په نښه کړی یم

پښه زما په ځمکه باندې نه لگي

زه دې په وریځو باندې کړی یم

ستا سترگو ټکور راله راکړی دی

دې ټولې دنیا چې خپه کړی یم

ستړی چې له خلکو نه درغلی یم

ستا خوږو خبرو دمه کړی یم



کـه په خـر گنده دې دنیا سره یم

خو په خیالونو کښې رابیا سره یم

ما یوه لحظه له ځانه بیل مه گڼه

زه په قدم له تا سره یم

دراز خبره مې یو تا سره ده

ناست که په پیندو د هر چا سره یم

نوره دنیا را ته هیڅ شی نه ښکاري

زه عادت ستا د مخ رڼا سره یم

ستا د نامې سره ویښ شوی یمه

که اوده شوی ستا سودا سره یم

ستا په خندا کښې مې خندا درگډه

زه ژړیدلی ستا ژړا سره یم

په ما په ژوند بدگوماني ونه کړې

زه به دا ټول عمر هم تا سره یم



زړه به تاخخه وي مخکښې به مې پښې ځي
راسره به ستا دياد لويې جوپې ځي
ستا په خواکښې څه په مينه تيرې کړې
راسره به ښکلې ورځې ښکلې شپې ځي
په رخصت کښې د ښو په سرپيلې
راسره به ستا اخلاص بلې ډيوې ځي
زه ستا مينه اوس له چاشم پټولې
ستارانجه مې څخيدلې په اوړې ځي
داسې ځمه ستا د کورکوڅې نه ځانګې
لکه پښو کښې چې د دَريومې سُنبې ځي
تاته وګورمه څنګ په غيريدلو
نيغ مې سترګو کښې بيلتون لښې لښې ځي
ستاراکړې لوزمې ډاډهم مې توښه ده
ګني څوک ژوندي ديار له چم کوڅې ځي



نوک له وری نه څوک شوکولی نه شي
څانګې له تامې څوک بیلولی نه شي
مینه چې مینې ته ورغاړه ووځې
ورغلې غیږې څوک خلاصولی نه شي
ستاسترګو ځیلې مې دي زړه کښې کړې
زړه کښې زرغونه څوک لړولی نه شي
ساهونه دوه چې سره یوشي نوبیا
څوک په اروېې جداکولی نه شي
داد یوبل په مخ راځوړند مخونه
څوک یې په بل لوري اړولی نه شي
ستامینې رنګ کړمه څه داسې رنګ کښې
چې سیوارنګ پې څوک خیژولی نه شي
اوس بې زماستاپه لاسونو باندې
څانګې نکریزې څوک لګولی نه شي



دادسپرلودغوړیدو ورځې دي

خانده رابیا دخندیدوورځې دي

دنولیدلوورځې تیرې شولې

اوس دارمان درژیدو ورځې دي

داداخترودنکریزوشپې دي

دادتالونوتودیدوورځې دي

زمابه مینه اغیزلي گرځه

دورې غیږې مړیدو ورځې دي

ددیدنونوقاطي ورځې لاړې

اوس له یوبل دتاویدوورځې دي



ستـــرې شـــو گـــیـرې دې راپه غـــاړه کـــړې
یخـــې یخـــې شـــپـــې دې راپه غـــاړه کـــړې
ستـــاخـــیـــالونه ریشم په خـــیـــالونوکـــنـــې
لویـې تـنـســـتـــې دې راپـه غـــاړه کـــړې
زړه دی اوخـــوږې خـــوږې سکونـدارې دې
داکـــومـــې کـــیـــســـې دې راپـه غـــاړه کـــړې
ستـــاخـــیـــالي وجـود په غـیـرکښې نیـسـمـه
تېرې تـلـوســـې دې راپـه غـــاړه کـــړې
ستـــادخـــمـــاروستـــرگـو په ست شـومـه
ډکـــې پـیـــمـــانې دې راپه غـــاړه کـــړې
دې لـیـــونـواوښکـوتـه لاوگـــوره
داخـــه تماشـــې دې راپه غـــاړه کـــړې



مینه که زما دهیرولووي
بیابه دلته څه دیادولووي
ته که هیرولی مې شې هیرمې کا
څوک به دې زما دبدلووي
ماته خودنیا وارډ تورتم شوله
ستابه څه دوخت دتیرولووي
تاخوبې رخصته کړه وکړله
دابه لاردکړې بیلولووي
ستاغوندې پخې چې اومې وخیژي
چابانديې اتباربه دکولووي
لرزما پښتوغیرت ته وګوره
ماغوندې په داردخیژولووي



ورځ مـــــې په ژوندی چونه تیــــریږي
شپــې مــې په چاپوشـوګـيـره کـيږي
داڅــــه ليــونتــوب ویاکـــه مـــينه وه
زړه کــښــې مــې بامــــبـرې لابليـــږي
هراخــــترچې راشي لادږدمن مـــې کړي
مــــاته ســــتــاتڼالونه رایادیږي
وینه زمـــانې مــې نښــتـــيــځلې ده
ســـتادلاس نکریزې پې خــوشـتــيـږي
ســتاپه چم کــوڅـه کــښــې شنګه ودریږم
پښـې مـــې په ســره ځــمکه سـوځـــيـږي
وام چې داســپـــيرې بلې مـــې ورانې کـــړای
ســـتـــاچې ورنه ســـرنه اوچتــــيږي
مـــاته هله وایه ســـترګـــې وچې کــړه
ســتـارانجه کـــه ستــرګوکـــښې تینګيږي



ډيروا وښتل پارونه اوس اوده شه

نور مه وهه چرتونه اوس اوده شه

زاړه وختونه بيا کله جاروځي

پرېږده زاړه وختونه اوس اوده شه

دچا هريوارمان دی ريږيدلی

څه زاړي ارمانونه اوس اوده شه

غمونه دې کړه ټول دې ټول دډډې لاندې

نڅوړ کړه پلوونه اوس اوده شه

بيانه راځي چې لاړلو په مخه

ټسې پردي يادونه اوس اوده شه



ولې زمانه ښتوې سترګې
خپلونه داسې اړوې سترګې
داهغه سترګې دي چې ته پې مړيدې
نن ورته نه اوچتوې سترګې
خلک زما او ستا کيسې پيژني
څه شي که ته پې پټوې سترګې
ستا يو قصوردی چې وژلی دې يم
ايله پدې نه لګوې سترګې
اوښکې دي وچې شوې قلاره شولې
اوس غتې غتې توروې سترګې
زما دخيال دپښتني ماته
نورې به څومره کوزوې سترګې



ستا غمونه ټول زما دي
ستا فکرونه ټول زما دي
که مې ساه دی که مې ژوند دی
زما خه دي واړه ستا دي
که رانجه دي که نکريزې
خطرونه د آشنا دي
ما د سر زړو کي وړي
شکرانوله د بابا دي
زما هر څه هر څه ته يې
نور هر څه رانه سيوا دي
په تا سترګې غړيدلي
له جهانه بې پروا دي
که کوڅې دې سره لړې
ولې زړونه خوا په خوا دي



ما خوېلې شوې ډېوې مرې کړلې
ځانته چارچا پيره مې تيارې کړلې
تا ته به اوس نه ګوري په بيرته بيا
خپلې جوړه ستر ګې مې ړندې کړلې
زهر و کښې لشه دزهر و ختمه شوه
داسې مې کاسې خپلې ترخې کړلې
ستا خطونه و وينځل په اوښکو مې
وراني مې د مينې کښيدې کړلې
نور د چا اخلاص باندې باور نه کړم
ته وې ډيره ما چې رانژدې کړلې
زهر را کول دې آخرې غورپ کښې
تلو کښې چې خبرې دې خوږې کړلې
اوس که ته راځې او يا که نه راځې
ما خو ستا په لور ستر ګې کږې کړلې



دي رايادې دچاپيغلې رنې اوښکې
سرې سکورتې وې که بلې لنبې اوښکې

زما لاره په ورو وروتياره کيدله
په بڼو د چاکتاروې ډيوې اوښکې

چې دميني په خازوباندې يې توی کړې
هغه اوښکې به وي څومره درنې اوښکې

ما په شونډويې د مخه انګولې
زما خدايه !چې وې څومره ترخې اوښکې

يوه کيسه دبې وسۍ يې اورولـه
چې له زيزموې ترزنې خورې اوښکې

مانه مخ دچاپناکړو خپلو اوښکو
بيا شريکې به يدلې تودې اوښکې



ساقي اوس دې ستونه ليوني څه کوي
دا پيندې بندارونه ليوني څه کوي
چې شونډې مې لوندې په لپه چونگ دې اوکه وچې
اوس داخوشي غمون ليوني څه کوي
اوس ماته تورې گتې اوبنديان دي برابر
داسترگې ،دامخونه ليوني څه کوي
هيڅوک مې په پرهريوه لانبه ابته نه کا
ليتې اوتکورونه ليوني څه کوي
زمادا اوتې بوتې که زغملی شئ نواورئ
داستاسولوی فکرونه ليوني څه کوي
زماخيري گريوان پورې که خاندئ بنه وخاندئ
لمن اوگريوانونه ليوني څه کوي

□

زه په میدان نه وم بې اسرې رابیا یوازې وه
زړه له چه به خومره ارمانونه یې راغلي وي
لاس یې چې راکښلو د نکریزو لگولونه
خومره به کنځل یې د پردو خپلو خوړلي وي
اوریې چې په مینه لگیدلی په بامبروؤ
خلکو نه به پټ یې په سلگو خومره ژړلي وي
وخت کښې درخصت به یې جړې کراریدې چرته
مړاوې اننگي به په رنځو کښې یې لړلي وي
داچې تیروتله په وروستي ځل په کوڅه زما
خومره په ارمان به یې کوڅې پله کتلي وي
وئ! هغه لحظه! د خپله شرمه او د ننگه نه
ټول زما خطونه چې په اوریې سوځولي وي



ته خو مشالونه بلولی شې
ځانته دنیا تېوله پسخولی شې
ماسره به څه په اوږه وژاړې
هو، سیوایي اوښکې تویولی شې
تانکریزې خپله خوشتې کړې دي
داوینې اوس څنګه پاکولی شې
زه به درنه ولې څه ماڼې کوم
ته دې رانه مخ هم اړولی شې
ماته به دې څه کړمه پاتې وي
بې زما هم ښه وخت تیرولی شې

زړه خوږه دې ښه اوس لګېدلی وي
مااوس ښه په مینه هیرولی شي
تاته اجازه ده هره پینه کښېږي
نوم زما په بدو یادولی شي
زه چې ستا د مینې نه وانه وښتم
اوس هم خپلې سترګې ښکلولی شي





مـــادمـــــيـنـيږ لـوی گـنـاه چـيږ كـــړی دی
خلـك اوس گـــــــوريږي اوزه غـلـی يـم

تـابـه پـه ژړازړگـی ســـــپـك كـــــړی وي
زړه زمـــــاورانـيـــــــږي اوزه غلی يم

زه دي لمن ســتــــــر گـــوتـه نيـــوی نـه شـم
ســــتـــــارانجــــــه دوړيږی اوزه غلی يم

مـــاتـه پښـتـــــوهيڅ اجـــازه نـه راكـــوي
ســـتـــــــااوربل خـــوريږي اوزه غلی يم

كـــاش پـه مـــخــــه ښـــه مـــيږ درتـه وويلی
لاره دي پـيـلـيـــــــــــږی اوزه غـلـی يـم

ســــتـــاحـيـــاپـه مـــاباندي بـه گـــرانـه وي
لاس چـي دي خـــلاصـيـــــــږي اوزه غلی يم

خلـك زمـــاســـتـــا پـه هـكـلـه څـــه وايـي
واوره رارســـــيـــــــږي اوزه غـلـی يـم



بیـــاراترغـــاړه شـــو آشنایادونـه
پـریږدي مـــېنه وژنـي مـــېدا! یادونـه
دتصـــورســـترگـــې مـــې لرې لاړې
راوپـارل یـې څـــه بـلـهـــایـادونـه
مـــاخـــوزړگی خـــپـل پوړده کـــړی ښـــه ؤ
مـــاوې جـــوړنه راځي بیـــا ســـتـــایادونه
مـــاوې چې تـه نه یې نویاد دې څـــه کـــړي
خـــوراشي ســـتـــانه شـــا پـه شـــا یادونه
راځـــي راځـــي نـــو پـــه خـــندابـــه راځـــي
راکـــړي ژړااوځـي پـه شـــایادونـه
لارې کـــه بـيـلـي شـــوې نوبـيـلـي بـه وي
لاغـــيږپـه غـــيږ دي زمـــاســتـــا يادونه
تاکـــه پـردي کـــړل ،زه يې څـنـگ وشـــړم
مـــاتـه دعـــادې کـــوي ســـتـــا یادونه



رابیا چې په زړو کوڅو تیریږي او کنه

قدم قدم سره یې څه یادیږي او کنه

کاته یې چې هغه او تراو تراولیوني دي

چې چېل یې له ببر سره ښویېږي او کنه

دالاریې ګټ پیرونه او دړې وې دچانخښې

دې نخښو ته چې ګوري نودوړیږي او کنه

بانه به یې زیارت کړو او دیدن له به راتلله

چې اوس یې هم زیارت پله زړه کیږي او کنه

نکریزواور نجوته ی هغه مینه شته که نه شته

په بڼ کښې داختر په تال زنګیږي او کنه

چې تولو دنیاڅي راڅي اوزه یو په کښې نه یم

دکلي په کوڅو چې به ژړیږي او کنه



ماسترګوکښې داوښکوچقول زده کړي دي
په لېمو مې دسورانګارپکل زده کړي دي
دمات زړګي خنداچې دژړانه وي بتره
پرې مې دیارانوتیرباسل زده کړي دي
منمه دهغې چې يې په زهروامو ختمه کړم
په مامینو! مادزهروښبل زده کړي دي
که دارته خیږوي مې زمانه، پروامې نه شته
ماهم په خپلووینولمبیدل زده کړي دي
که لاره دژوندون په هرقدم ازغي ازغي شوه
ماهم دلیونو په شانې تلل زده کړي دي
په ډیرې آشنايئ کښې لکه نه چې پیژنم دې
ستامخ ته مې رابیا داسې کتل زده کړي دي
داپینډې، بنډارونه موآباداوسه عالمه
ماهم دڅان سره مئلیس کول زده کړي دي



اوردزړګي ژبه کــــوله اوريې ســــره لاســــونه وو
اوښکوکــــښــې لړلي دوروســــتي ځل ديدنونه وو
داســې راترغــاړې شــوه چې بيــادبيليــدونه وي
کـــريکې وې،سلګۍ وې ،رپندۍ وواو ويرونه وو
ګګ شومه لل ګل شوم داحساس ډيوې مې ګل شولې
أف!زمــا په مــينې زمــاربه قــيــامــتــونه وو
داســې ښکاريده لکه دنيــاچې لاړه ورانه شــوه
ژوندپه ځنکدن و ،ودريدونکي يې نبـــضــونه وو
زه دګتې بُت شوم ،پښې مې ځمکې پورې ونښتې
لاړله پناشــــوه ،په شــــا پاتې يې تش پلونه وو
بيـــاهم زه ژوندی یم ،مـــاله هيڅ بلاونه شـــوله
مــاويل ،دمــرګــيــه جــوړورتيــرداګــوزارونه وو



هرې څپې بلې ته سپارلی یم
داسې اباسین ته غورځیدلی یم
یوه لنبه وژمه بله ژبه کړي
داسې سروسکروتو ته ختلی یم
داتندرونه بل لوري ته نه خوځي
زه یې په دې کلي کښې لیدلی یم
خلک چې زیارت یې په ژوندوني کړي
زه دچادمینې هغه څلی یم
ماچاله پوتۍ خندا ورنه کړله
زه څومره سپیره او کړیدلی یم
زه دخزانو نوګیله نه کوم
زه په بهارونو رژیدلی یم
راشه تورانګې په ماویرو کړه
لړپاتې یم د یرڅه سوځیدلی یم



داسې په ارمان اوبې وسی کتل
گور ته جنازې لکه روانې دي
ستر گو ته دې گورمه ویریږمه
ځن په کښې داوښکولامبوگانې دي
ډک کلی په مادې هدیره کړلو
گیرچاپیره تورې بلاگانې دي
داکوځې دمینې دپسرلو کوځې
څومره شاړې شاړې دي اوورانې دي
ژونددمینې څومره کړیدلی و
لارې دبیلتون اوس څومره گرانې دي
ته زمانه لرې که هرچیرته ځې
ځه درسره ملهې دعاگانې دي
مه گوره زما اوښکو ته مه گوره
داهسې راغلې دي نادانې دي



لاېي لنبې تيزې شي په اوښکو کښې
چاپه ژړا اور د زړه وژلى دى
زړه مې يوه زولنه نونکى شولو
اوس دلنبو پرهونه وتلى دى
مينې دې *چتونه کړه اروا راله
چت دار وا کله چا گنډلى دى
چا په هديرو مانى ودرولې دي
چا مړى ډولى ته خيژولى دي
گريوې مې اوس داسې گارې گيتې شوې
وخت د گيندې نوارې يې نورتلى دي
ستا کته مهري به څه له ژاړمه
چا سره چا غم دلې ويشلى دى

*زخمونه



کله شم هیرولی پرونی ورځې
پښوته را پریوتې زولنې ورځې
تاته چې آواز کله درکئ که نه
هغه ستا دمینې لیونی ورځې
دومره تیره شوې لا موده نه ده
ته چې تپوس وکړې کلنی ورځې
ستا دمینې چاپ پې لګیدلی دی
تاته څه رنګ ښکاري اوس پردی ورځې
نه دې کلی کور، نه دې خپلوي شوله
داسې به راتلې دبې ارزی ورځې
ستا ځواب به څه وي ته به څه وایې
کله خوبه وي د ریښتینی ورځې
تامې دسیالۍ شمله راټیټه کړه
دادې هغه ښکلې دسیالی ورځې



رابیا څله اوس بیا مې په خیالونو کښې راځي
پرونی په مخ واچوي خوبونو کښې راځي
لنبې چې کیناستلې دي اوس پریږده چې سرې شي
چې لاړلې بیا څه له په یادونو کښې راځي
دالارې بیلې شوې به هیچیرې یوځای نه شي
بیا څه له په هغولارو چمونو کښې راځي
ستا رنګ او ستا بشره به بدل شوي وي بلها
زړو جامو کښې څه له، تیر وختونو کښې راځي
د نورو خلکو سترګو کښې دې سترګې شي راوړاندې
دا څه له د پردو خلکو مخونو کښې راځي
زما لمنه پریږده چه ورځم په خپلې لارې
نور مخې له مې ولې ګټ پیرونو کښې راځي
زما زړه هدیره ده د رپسې چې مړی نه شي
یوازې پرې خوشو کنډرونو کښې راځي



یو ته مې خپله وې او ته مې هم دښمنه شولې
زما نه لرې، څومره لرې استوګنه شولې

زه خو د غم په ورځ پیدا یمه لږ زغم به وکړم
په تا مې سود شي ډیره ښه شوه چې ښادمنه شولې

ستا خوځولې د خوشالونه زماني ډکه کړه
دا به ډیر بد کوي، که دې کښې هم غمجنه شولې

هغه د مینې زیړی رنګ چې دې په څه کړو بدل
داڅنګ بیلتون و، چې پکښې ته سره بخونه شولې

ما له دا ډیره ده چې تا ته ملامتـه نه یم
د مینې لاره کښې آخر ته په بایلنه شولې

نه دې سلام راځي، او نه دې بیا ربیار راغلی
رامعلومیږي ډیره ستړې په پوښتنه شولې

هر یو قدم مې په ګلونو منجرو لګیده
د ژوندون لارې! راته څه بلها ازغنه شولې



مـا په قـلار پرېږدئ، مـا د مـينې نه توبه کـړله
زهر مې بـه وګـوټل، له ژونده مې تېـنه وکـړله
بيـا به مـينه نه کـومـه، دغـه راله ډېره وه
ووته ارمـان مـې، خـپله خـوامـې بـه سـره کـړله
ماته دې نه سترګې څوک غورځي، نه دې بنګړي شرنګي
مـا په ګـوګل دننه زړه د شـين کـاڼي ټوټه کـړله
مـاسره څـوک مـه ترځئ، مـا هر يو خـپل پردی کـړلو
خـوله مـې وګنډله. هـيـره هره مـې نامـه کـړله
دې دنيـا له څـه دي، مـا څـه بدورسـره کـړي دي
ځـانله مـې پخـپله خـپله مـينه اداره[1] کـړله
هرسـړی څـپـولی پې ترخـپـله وسـه ايښی دی
مـاتـه دی لوی کلی راپه سـر لويه چاپه کـړله
داسـې دې دکـړه راله کـړې چې بيـا پانه څـم
مـا په خطـايي د چالمن ته کـه اسـره کـړله

---

۱ ورانه



دې نيمه خوا ژوند پورې خندا راځي
خولې له مې خبرې ناروا راځي
زه څپو وهلى چې ژوندى يمه
ځان پورې په بيا بيا حيرانتيا راځي
اوښکې مې په خط کښې ورليږلې وې
اوښکې راله بيرته د رابيا راځي
وايم هغه مينه وه که وشتې وې
کله کله داسې هم سودا راځي
ډيرو ښايسته وته چې غبر کوم
خولې له مې نامه تراوسه ستا راځي
ژوند سره مې جوړه جاړه کړيده
کله په ناخواله اوس خندا راځي

***

چې ژوندي ځانونه مړه کړي

هغوی کله راژوندیږي

چې مرګې په ژوندون مړ کړي

هغوی هیڅکله نه مړیږي

یو د زه یم، په روزلو

مرګ له سرځنې اوړیږي

که بیا ړنګه دې شي پړی[1]

سمسور زه یم، نه ړنګیږي

چې په خیر د خپل څښتن وو

بې کالبوته به هستیږي

***

چې تش ساه اخلي نو مړه دي

مات په هر ډګر او پړه دي

ژوندي هغه چې په زغاښت دي

او میړه غوندې په کړه دي

د ریښتیا و ننګه کړوني

---

۱ - وجود.



ځـــان کـــه تومـــتـــونه ته نیـــولې شـــې

مـــاســـره راځـــه مـــینه کـــولی شـــې

پیـــتـی کـــه د غم اوچتـــولی شـــې

شـــپـــې کـــه په ژړا شـــوګـــیرولی شـــې

ویـنې کـــه د زړه چرې ګـــوټلی شـــې

خلکو ســـره تورې کـــه وهلی شـــې

مـــا ســـره راځـــه مـــینه کـــولی شـــې

دا لاره په څـــوکـــو د چړوټلـې

لاس راکـــا پدې لاره چې تللی شـــې

مـــا ســـره راځـــه مـــینه کـــولی شـــې

دې کـــښـــې د پښـــتـــو خـــبرې هم راځي

ښـــه ده چې پښـــتـــو دې ټینګولی شـــې

مـــا ســـره راځـــه مـــینه کـــولی شـــې



بیـــا دې اباسـینه څـپــې تیــزې شــوې

څـــه را ببــریرې او څــه تیــبرې شــوې

نــن د چا بیـــرې تـه دې څـــــو ډالـی دي

بیــا گــوره څـپــیړې دې رانیــغــې شــوې

نـن دغـــا الغـــوټو ســتـــر گــې دې ورانې دي

بیــا د چاپوښتـــی له څـمکی لیـوې شــوې

بیـــــا دې کـــــومي واز دنـهـنگـانـو دي

بیــا د چادویر خـبــرې پیــښــې شــوې

بیـــا دی په وښکو څگونه وغـــور څـــول

بیــا وایه سـپـیـری چې د چا مــېنې شــوې



بیا زما په لاره کښې ګلونه غوړوې څه له
بیا تیره ازغي مې په پښتو راښخوې څه له
مینې سره داسې پټ پټونې کول ښه نه دي
زړه مې رغوې څه له او بیا یې ورانوې څه له
ماله چې د ټول عمر خندا خوشالي نه راوړې
شامدام ژړلوله پوتۍ مې خندوې څه له
پرې مې پرده ذرې درې زړګې چې خپل راټول کړمه
لنډې باچاهۍ ته مې د مینې پسخوې څه له
ته به لمن راکښې زه به ننګ غیرت اخستی یم
ما په جوماتونو په حجرو کښې شرموې څه له
ته کړې ریبې او کله دا شي کله هغه شي
ما په قلار پرېږده هیڅ بې هیڅ مې تنګوې څه له



ستا د مینې لار کښې د ګلونو پړاوونه دي
کله مې سندرې په مړوند، کله رنګونه دي
هره یو لحظه لکه نکریزو کښې رنګ شوې وي
ما ته ستا کولاچې دا خواږه ښکلي وختونه دي
ستا د مخ په یاد کښې د سپوږمۍ په ګاونډ اوسمه
دالړۍ لړۍ جومپکې ستورې ستا چمونه دي
هره پلوشه لکه چې ستا د مخ بخرې وي
هره یوه ورمه ستا د کمخو پاسته شړقونه دي
کله دې بنګړو ته اشارت کړې لکه ستر ګو ته
چار چاپیره څومره چې نغمې دي ښایستونه دي

## د واده په ماښام

د مـــينـې غــــيـرې لـه ســبــا راځــــه
راځـــــه، زمـــا ښکلـې را بـيـــا راځــــه
راځــــه په دواړه كـــړو شـــريـک غــمـــونه
زمـــا د ټول عـــمـــر ســـودا راځـــــه
لاس دې راوغـــوړو راځـــه په مـــخكښـــې
زمـــا پـښـــتـــو، زمـــا حـــيــا راځـــه
راځــــه چې ځــانله يوه دنـيــا كـــړو جــوړه
راځـــــه لـدې ټولې دنـيـــا راځـــــه
ژونـدون نـيـــــمگړی دی بې تـانـه زمـــا
زمــــا د عـــمـــر نـيـــمگړتيــا راځــــه
راځــــه چې مــــاتې د بيلتـــون شي پـولـی
پرانـســــتـــې غـــــيـره په خندا راځـــــه



ډیوه په تمه تمه د خـــــــارو مـی بـلـولـه
ســتــا نـه مــې د یو ســره نه تر بله کچ کــولـه
وې سترګې په درشل مې او غوږونه په ښکالو مې
په خیال کښې مې راکښله او له زړه مې جوختوله
چې لږ غوندې به کش شوما به وې چې دادی راغله
بیـا خـولـه مــې هرکلي د مــیلمنې ته جوړوله
یوه یوه شــیــبــه لکه د غــره هســې توږل وو
ګـړۍ ګـړۍ مــې څــه په شــواخــونو تیــروله
راغلې هغــه تل وه، بیـــا بـه ولې نه راتلله
هغــې په عــمـر خــود کــښې لا د چا پروا کــوله
خــو... هغــه خــو مــروره وه د کلـه مــروره
دا زه وم لیـــونی چې د ناکـــام مـــې یادوله
تیـاره وه شـومـه دمږ او کـوځې وې تولې خـوشې
هیــڅــوک د راتلونه وو بیـــا ډیوه مـــې بلوله



ته چې راسره یې نوشپې ورځې څومره ښکلې دي
لاره کښې غونچکې د پسرلو مې غوړیدلې دي
ستا له مخه سور سالو دې ټول جهان اغوستی دي
هرې یوې شیبې په لاس نکریزې جوړ تپلې دي
هره یو لحظه به ولې ښکلې مې د ژوند نه وي
چرته پې ستا ګوتې، چرته شونډې لګیدلې دي
مانه امانې دنیا ستا سترګو پنا کړې ده
ته به وایې ما زغو کښې مې ستا سترګې راختلې دي
ته به وایې رنګونه د بوډۍ د ټال دې نوستې دي
تا سره ښایسته څومره دا پینډې، دا محفلې دي
نه د شوګیرو جوتې ختمیږي، نه خیالونه دې
لویې تنستې دې راته مینې غوړولې دي



اې د ژوندون غــمــه وايم اوس چې لیــوني شــولی
خــلاص مــې په یو ځلې د تږتکونه زړگي شــولی

خوشو ځنګلونو کښې د ونهـه مې چرته جوړه کړای
پروت لکه ډکری غوندې ورو ورو پکښې لوگي شولی

ښــه په برک خندلی مــې د نیــا پورې هم ځـان پورې
ســتــرگــو ته مې بت د تورو گــتــو هر سړی شــولی

نه چې په ماښام نه په سباوې سد مې ورک شــولی
دا ســپــیــره جــهــان راته چا پیــره ترمگي شــولی

دا بلی ُبتکی او چم کــوځــې او گــودرونه دا
وران مــې د مــازغــونه ددې کلي هر یو شی شــولی

پښــې مې ازغــو ســوری ریښــې ریښــې نمري

ورک شوی په میرو باندې، بې نومه لاروی شولی

چغې او سورې وای راپسې او خندنی شپیلي

زه د هر یو لوري نه په گتو چې ویشتی شولی

نه چې مې خندا او نه شرنگا پسې مخ اړولی

نه مې بیا ښکلا او داسندرې پېژندی شولی







زهر راته واچوه ساقي نور په جامگو کښېږي
شپه د یره درنه شوه تیل وچیږي په ډیوو کښېږي
زه د پلوشو دنیا په ډاگه غورځولی یم
پریږده چې غوپه شم په سیندونو د تیارو کښېږي
نه مې هغه زړه دی، نه مې هغه ژوندی رنگه ده
څه له حسابوې مې یه عالمو په ژوندو کښېږي
نوم چې څوک د مینې راته اخلي نو خندا راځي
زه یم ایرې شوی، خلک څه گورې ایرو کښېږي
کومه یوه خبره کوم یو کار زما د روغودی
دا بیله خبره، چې شمیر نه یم لیونو کښېږي
هلته دیوالونه او بُتکی زما لمن راکښېږي
څنگ ادل بدل شم په زړو لارو کوڅو کښېږي
وینې زما واخلئ د بڼ ونې پې ښیرازې کړئ
څوک په تال ختلی خو یادی به مې جوتو کښېږي



پرې مې ږده لمنه اوس به لاړه شم

مه کړه غاښ چیچنه اوس به لاړه شم

لړدیدن او ډیر دیدن هم هغه دی

نه شته مړیدنه اوس به لاړه شم

داکه زول جېړ شه بیا به ګرانه شي

ده خېره چنه اوس به لاړه شم

ډیرایساریدل بده خبره ده

ده دنیاشکمنه اوس به لاړه شم

بیابه چیرته راشم چې خپه نه شې

غواړم اوس بخښنه اوس به لاړه شم

درنګ ساعت په خوندخوشحالی وواته

نوره بیامئینه اوس به لاړه شم



زه د آشنا ستر گو بلاو خورم
چا ته فریاد وکړم چې چا وخورم
ډک مې دی زړه خوله پرانستلی نه شم
نصیبه زه خپلې حیا وخورم
ما به پخوا زړه وغونډ کړی له تا
پښتنې ستا دغې وفا وخورم
زما له هیچا نه گیله نه شته دی
خپله زړگیه! زه خو تا وخورم
غم مې د مینې ستا پرسراو ستر گو
زه د پردو خپلو خندا وخورم
ستا د یادونو قافلې غونډوي
زه د سپوږمۍ ستورو رڼا وخورم
رنگ به چې واخلي په نکریزو کې نه
د زیړو لاسو دې سودا وخورم



کچه لوظونه دهیریدو وې
کچه بنګړي خو دماتیدو وې
دلارې منځ کښې چې آشنا پریږدي
داخه وفا وې داخه پښتو وي
یو په خنداوي مرادې سرشي
بل چې ژوندی وي په لمغړو وي
دمینې لاره تیره ترتورې
پورې وتل پرې دلیونو وي
ماخو له تانه ګیله ونه کړه
وایې چې خپل وي ځای دګیلو وي
دزړه په مینه ایساریدل شي
چې زړه یې ناخلي هغه دتلو وي
پوره له تانه چې نه شوه ښه شوه
چې ملامته ستا په اوږو وي

رجړومه د پښتو ژبې د مفکر فلسفي لیکوال او شاعر او غورځنګغږي ویاند ګوهر رحمن ګوهر د تاند زلمیتوب د مینو او لیونیو شیبو شاعري ده چې زموږ د ذوق سترګې د مینې په رنځو راتوروي. رجړومه د هغو شپو ورځو انځور ګره ده چې شاعر، دستور تلیزو او پینې (کایناتو) د ناپایه سمندرونو پر ځای په دوو ښکلیو سترګو کې خپله ورکه لټوله. دلته شاعر شپې او ورځې د خپل معشوق په رنځولړلې اوښکې ګڼې او شفق په نکریزو سرې منګولې.

دا کتاب د ګوهرصیب د وروستنیو کتابونو په څیر د ژورو فکرونو او فلسفو کړلیچونه، نه لري. دلته د مینې فلسفې د ښکلا درک او احساس ته غیږه پرانیستې ده. «رجړومه» د مینې له سلیماني رنځوډکه ده چې د لوستونکو د نظر مخې ته یوه وړوکې خو ښایستوکې دنیاګۍ راښنه کوي. داسې دنیاګۍ چې د ښکلا شهزادګۍ یې د مینې پر تخت ناسته او یوه مهینه پاچهي یې جوړه کړې ده.

ګرانه لوستونکیه! که د روح په ګړنګوکې دې د اروابناد احمد خان دا سندره تاوه راتاوه شوې وي چې وایي:

مړاوې دې په سترګو کې د مینې داډیوې مه شه

ستا خندنی سترګې په ژړا چیرې لوندې مه شه

نو دا ومنه چې د ګوهر د زړه غږ دی.

ګرانه لوستونکیه! که د کشور سلطانې له درده ډک د انځور او نرګسې آواز په جامو کې دې داسندره د زړه په کورګي کې میلمنه شوې وي چې وایي:

زه د آشنا سترګو بلا وخوړم — چاته فریاد وکړم چې چا وخوړم

نو دا هم د ګوهر د زړه د سیپې یوه تانده مرغلره ده.

ناهید کتاب خپرولو موسسه له ګران وروړ اسدالله ساپي څخه یوه دنیا مننه کوي چې په «ډیوټ» پسې جوخته یې «رجړومه» د ګرانو لوستونکو د نظر مخې ته کینبوده.

په ډیره مینه او په ډیر ادب

پیر محمد کاروان – 15.8.98 – پېښور

چاپ : دانش کتابخانه، ډهکی نعلبندی قصه خوانی